# حرک

دکابل د (ع ـ غ) اداره د کومې سولې په لټه کې ده ؟

دوولسم کال دویمه ګڼه، پرلپسې ۸۶ ګڼه، کب، ۱۳۹۳ل، جمادی الاولی ۱۴۳۶هق، فروری ۲۰۱۵م

د ښځو د ورځې په پلمه

دمهاجرینوله کړولوڅوک خونداخلي !!

قاتل ۲۵۰ انسان بی گناه جایزه می گیرد!

دموکراسی ابتذال!



د هلمند عملیات که د ناکامو تجربو تکرار ؟!




علمي ، فرهنګي ، ټولنیزه اسلامي خپرونه

دوولسم کال دویمه ګڼه پرلپسې ۸۶ مه ګڼه، کب ۱۳۹۳ل،
جمادی الاولی، ۱۴۳٦ پروري۲۰۱۵م

امتیاز :

دا مـتیازخـاونـد : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیـر : عبید تنویر

لیکوال پـلاوی : ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۲٤۰ کلدارې |
| امریکا : | ٦۰ ډالره |
| اروپا : | ٦۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۱۵ افغانۍ<br>۲۵ کلدارې |

یادونه

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي خانګه

پتې :

کابل : د څرک دفتر srak_111@yahoo.com


## لړلیک

| ګڼه | عنوان | مخ |
|---|---|---|

## د عین او غین اداره

# دکومې سولې په لټه کې ده؟

دکابل کاواکه اوسربداله اداره چې افغانان یې(عین او غین بولي)  په دې ورستیو کې په نړیواله او سیمه ییزه کچه سختې منډې ترړې پیل کړي ، چې دخپلې خوښې اوفرمایش په رڼاکې داسې سولې اوروغې ته زمینه برابره کړي چې دنوموړې اداري او یایي دبادار انو اړتیا او ضروت  پکې متحقق وي .

اشرف غني ددې لپاره چې په امریکایانو دافغانستان دخرځلاو له تاریخي جنایت څخه تریوې مودې پورې دخلکوتوجه بلې خوا ته واړوي اوضمنادسیمې په کچه حساسیتونه  او اذهان په اغفال کې وغورځوي ، نودافغانستان له اسلامي امارت سره یې دسولې او روغې امریکایې پروژې ته لاس واچاوه، اوپه دې برخه کې یې دافغانستان دځینوګاونډیو هیوادونو دروازې  وټکولې ، چې که هغوی دده دخیالي سولي اودام  په خاطر خپل اثر ا ورسوخ استعمال کړي ، دی به په  افغانستان کې  دهغوئ یولړ تاریخي  اواقتصادي  امتیازات ومني !!!.

ترټولو ړومبی ټکی دادي ، چې دعین اوغین  اداري ته  که په رښتیاپه افغانستان کې دسولې اوثبات افغاني اړتیااومصلحت مهم وای اوستراتیژیکي امریکایي ګټې ورته مقدمې نه وای ،نودخپلې لوړې په دریمه ورځ به یې له امریکایانوسره دافغانستان  ددایمي اشغال او اډومعامله اولاسلیک نه ترسره کاوه ؟

داچې اشرف غني ته تربل هرکار وړاندې دامریکایي اشغال اوړدول اوداشغالګر پوځ مصؤنیت حیاتي ارزښت لاره ، نوداخبره په اثبات ورسیده ، چې دنړۍ ددغه دوهم  متفکر! ټول سوچ اوفکر په امریکایي ګټوکې منحصر اوخلاصه ده .

دامهمه نده چې په افغانستان کې دامریکایي عسکروشمیر باید څومره وي ، اونه هم څوک ددې خبرې تضمین ورکولای شي چې امریکایان کومه ژمنه وکړي په هغودې بیاترپایه ودریږي  ، ددې ترڅنګ دافغانستان داشغال لپاره لس زره اولس لکه امریکایي پوځیان یوه معنا لري ، ځکه هغه  قاتله جنګي تکنالوژۍ  چې  دتیرو۱۴ کلونوپه اوږدو کې یونیم لکو امریکایي  اوغربي عسکرو په افغانستان کې وکاروله ،لس زره عسکر یې هم کارولی شي !!

نوپه دغسې یوحالت کې چې زرګونه امریکایي لښکري له خپل جنګي ماشین اوبدماشی سره ګوته په ماشه پراته وي اوهره لحظه یې دیرغل اوتیري امکان موجودوي اوداشرف غني  مهمه هڅه  هم  داوي چې څنګه  دامریکایي عسکرو خوندیتوب  ته  لازم شرایط اماده کړی ، نه پوهیږو چې  په دغسې یوحالت اوجریان کې به دکوم سلیم عقل خاوند دسولې په نامه په روانه امریکایي پروژې خپل امیدونه وتړي اویادې دعین اوغین  اداره ددې  وړ وبولي چې کومه  خبره یې  واوري ؟

اشرف غني او اداره یې باید په دې خبره پوه شي چې سوله هغه وخت  ممکنه  او عملي زمینه ورته مساعدیدلای شي ، چې دسولې غلیمان اوقتلونکي په رښتیا هم سولې او جوړې ته غاړه کیږدي ، دافغانستان اشغال ته دعمل په میدان کې دپای ټکی کیږدي ،خپل جنګي ماشین له خپلوکمواوډیرولښکروسره له افغانستان څخه وباسي اوافغانانوتـه موقـع پـه لاس ورکـړي چـې دخپلـې خوښـی سوچه اسلامي نظام جوړاوبرپاوګرځوي ، که اشرف غني دافکرکوي چې خپله مکاره سوله به  دځینوګاونډیوهیوادونو په اغیـز اوفشـار تحمیـل اووتپی  اوهغه  څه یې  چې دا۱۴ کلنې جګړې  په ترڅ کې ترلاسه نکړل اوس به هغه دسولې ترپوښ لاندې ترلاسـه اوپـه مجاهـدو افغانانو ومني ،  فکر کوو دابه یوباطل اوغیرعملي سوچ اودځان دتیرایستلوپه معناوي!!

بشير

# دسولې روانې اوازې !

# دروغ یاحقیقت...؟

رسنی د څو اوونیو راهیسي پرلپسي د مذاکراتو نغاره غږوي! او دا اوازې او ازانګې خپروي، چې: دکابل لاسپوڅي رژیم سره طالبانو (اسلامي امارت) د خبرو کولو اومذاکراتو لپاره چمتوالی ښودلی! او هم یې ترمنځ یې څو پټې ناستې ولاړې هم ترسره شوي دي!!

خو ددې راپورونو په رد اوغبر ګون کې اسلامي امارت او طالبان پرلپسې دمذاکراتو په اړه ټولې اوازې دروغ بولي اوپه سختو ټکیو کې یې ردوي، دهغوی په وینا دا د دښمن د جاسوسۍ شبکو لخوا دروا غجن تبلیغات دي چې په مټ یې هغه غواړي دخپلو قواوو کمزوری مورال قوي کړي، ددې ترڅنګ هغوی خپل دا پخوانی دریځ "چې څو له افغانستانه ټول اشغالګر عسکر نه وي وتلي" خبرې او مذاکرات بې معنی دي!!هم بیا بیا اعلانوي، په دې لړ کې تازه دهغوی (اسلامي امارت) لخوا مطبوعاتو ته په یوه استول شوې اعلامیه کې په صراحت ویل شوي: چې ددغو اوازو د خپرولو ترشا مرموزې جاسوسي کړی لاس لري! باید څوک پرې باور ونکړي،اعلامیه زیاتوي: په تیرو دیارلس کلو کې هم په ځلونو دغه ډول اوازې خپرې شوي ، چې لله الحمد مجاهدینوته یې هیڅ کوم زیان ندی رسولی! اونه یې کومه بې باورې رامنځته کړیده، چې روانه دروغجنه څپه به هم تیره شي او وخت به هر څه ثابت کړي...

دهغوی په اعلامیه کې سوله دهېواد والو ارمان اوضرورت ګڼل شوی، چې په اند یې: اسلامي امارت یې دتامین لپاره ابرومندانه هلې ځلې کوي! خوداچې په هېواد کې اشغالګرځواکونه شتون لري او داسلام ضد اعمال جریان لري نو له امله یې جهاد فرض عین دی ، او په ضدیې وسله کارول شرعي امر بولي....

ښکاري چې دښمن په مخامخ جګړه کې ستومانه او له بشپړې ماتې سره مخ دی، اوس ددغسي حقیقت څخه په لرې اوازو او تبلیغاتو سره هڅه کوي چې دنړیوالو او په خاص توګه د افغانانو اذهانو تیر ایستلو په موخه دمذاکراتو مردود جسارت په ځلونو تکرارکړي !

بله موخه داده، چې له دې لارې غواړي داسلامي امارت مجاهدینو وحدت او خپلواکۍ ته زیان ورسوي! ددې لپاره دا ذهنیت خوروي چې ګواکې هغوی( طالبان) یرغمال دي! او ازاد ندي!! په دې لړ کې دکوم دریم هېواد د کردار بیا بیا ستاینه هم دا پیغام لري،چې ګنې خدای مکړه د روان جهاد ریښې له افغانستانه بیرون دي!! او روان جهاد افغانانو نه؛ بهرنیانو روان کړی دی ! او دا هغه تور داغونه دي چې داسلامي امارت خپلواک کردار زیانمنوي او د ولس له زړو نو څخه دامارت اومجاهدینو سره دهمکارۍ شته روحیه وباسي ،! په طالب اومجاهد افغاني پرګني بدګومانه



کوي!... هم دغه وجه ده چې مغرض دښمن دې کارته دومره زيات ارزښت ورکوي چې له تيرو ديارلس کلو راهيسې- يې يو وخت هم تم کړې نده او دوام يې ورکړی دی، څو په ترڅ کې يې ولس په مجاهدينو بدګومان اوبې باوره کړي...

دامريکايانو له لوري داربکي مليشو له کرغيړنې پروسې سره هم په دغه کرکجن پروپاګند او تبليغات مرسته کوي ، غرض داچې امريکايان له دغې- زهرجن پروپاګند کولو ناوړه اغراض لري چې يو يې دافغان ولس او طالبانو ترمنځ د بې باورۍ او بې اعتمادۍ فضاء رامنځته کول دي، هغه مجاهد چې افغان ولس يې دهېواد دازادۍ او خپلواکۍ وروستۍ مورچل بولي او ورپورې يې دازادۍ هيلې تړلې په دې ډول تبليغ او پرو پا ګند سره هغه د بدنامول غواړي او خلک تري متنفراولړې کوي، نو په ټوله کې دا يوه لويه توطئه او دسيسه ده چې مستقيماً دښکېلاککرځواک په لارښوونه درسنيو دلارې پرمخ بيول کېږي چې سل په سلو کې دروغ او حقيقت نلري!

خو تير ديارلس کلن تاريخ شاهد دی، چې افغان ولس هر وخت دغسې دسيسو ته متوجه اوپام لري او داستعمار له ټولو پلانو او ارادونه آګاه دی، او په دې دپوهې درايت لري چې دا هر څه په جعلې او تقلبې بڼه خپريږي هيڅکله اصلي او واقعې ندي، ديته په کتو مونږ ډاډ لرو چې دښمن به پخپل هدف کې برى نه مومي او داسلامي امارت او ولس ترمنځ دواټنونو ايجادولوارزو به يې هيڅکله پوره نشي، په دې لړ کې دميډيا له لارې يې وړاندې هم ګڼ بې اساسه راپورونه خپاره کړيدي ،چې هغه هم په کومه لويه لاسته راوړنه ندي منتج شوي ،دا اوازه چې نن يا سبا طالبان خبرې پيلوي !! دوخت په تيريدو به ټوله دسيسه رسواه شي ،کومه چې امريکايان اوميډيا نن په دروغو تبليغوي، څو دولس دننه مجاهدين بې باوره کړي او دمجاهدينو پخپلو ليکو کې هم تشويشونه وشيندي او پخپلو مشرانو هغوی هم بد ګومانه کړي او په دې ډول د راتلونکيو پسرلنيو عملياتو مؤثريت کمول غواړي . خو تيرو تجربو ته په پام ويلای شو چې په دې سره به دښمن خپل بد شکست کله هم په برې بدل نکړای شي ،نه به دمجاهدينو او ولس ترمنځ بيلتون رامنځته کړای شي او نه به مجاهدين پخپلو مشرانو بې باوره کړې زکه دايو عقيدوي او فکري جنګ دی هرڅوک يې په اړه شرعي وجايب او مسئو ليتونه حسوي... او ورته ځېر دي

دسيمې دچاروکتونکوپه اند:که څه هم په تيرو ديارلس کلو کې دغسې دسيسې بې تاثيره ختلې، او ددښمن لپاره يې هيڅ کومه اعظمې لاسته راوړنه هم نه درلوده، خوبيا هم يومخ يې تاثيرله پامه غورځول هوښيار تيا او زيرکتيا نده ،ځکه ددې ترشاه خامخا دښمن اوږده پلانونه لري،هغه غواړي ددغو تبليغاتو له لارې ځان هغوته ورسوي، حتماً بايد دمجاهدينو مشران ورته ځير اووسي او په وړاندې په غبرگون ښودو کې زيات جدي او بيدار اووسي.

ولې دا مريکا يې چارواکو له څرگندونو داسې جوتيږي چې دوی د انسانانو دوژلو اوځورلو لپاره روانه کړې لوبه ژر اوپه اسانه پای ته رسول نه غواړي ! نو حتمې ده چې هر کله امريکا له وحشتونو ظلمونو او جعل کاريو لاس نه اخلي ، او داشغال په دوام ټينگار لري، نوپه مقابل کې به يې حتماً جهادهم دوام ولري ولې له دې پرته بله لار نده پاته، څو امريکا له خپلو بدو عزايمو نه وي په شا ، دافغانانو دازادۍ او استقلال ترلاسه کولو مبارزه به روانه وي. نوپه راتلونکي کې هم شايد ددېته ورته دروغ او پروپاگند کول دجگړې ديوې برخې په توگه ورسره مل اووسي.

او له کله نه چې امريکا په افغانستان ناروا يرغل کړی او پکې خپل لاسپوڅی حکومت يې کينولی، دوامداره کوښښ کوي څو په مختلفو پلمو او بهانو خلک مصروف کړي ، چې دهغو لړ کې يوه تيرايستونکې بهانه هم دا دسولې او خبرو دپيل اوازه ده! چې پکې امريکا هيڅکله رښتينې نده، او نه له زړه نه سوله غواړي، ځکه امريکا يرغل کړی د دې لپاره، چې جنگ پرمخ يوسي، له دې وچې هغه دجنگ پرته بله اراده او پلان نلري او پخپل ټول وس اوځواک دجگړې شدت غواړي، نه په عمل کې سولې ته ژمنتيا لري او نه يې په وهم اوخيال کې د جنگ پای ته رسولو ستراتيژۍ گرزي، يواځې دميډ يا له لارې د ساده خلکو اذهانو د مصروف ساتلو لپاره دسولې په اړه تشې اوازې او دروغجنې خبرې خپروي، چې دادی په فلانې هېواد کې مذاکرات پيل کيدونکي دي! دادی فلانی هېواد دطالبانو په چمتولو کې مخکښ او رغنده رول لوبوي! اوژربه جنگ پای ته و رسوي! خو په عمل کې دايوکار هم نکوي او نه يې دکولو اراده لري او هرڅه دروغ او د واقعيت خلاف او سرچپه تبليغوي

ځکه سوله خپل اصول اومعيارونه لري، دهغو په رعايتولو او په پام کې نيولو سره دجانبينو ترمنځ دباور او اعتماد هڅوته اړتيا وي تر اوسه امريکايانو او کابل مزدور رژيم داعتماد سازۍ لپاره لومړی گام ندی پورته کړی،نوڅنگه په اسانه اوپه لنډ وخت کې دا هرڅه وشول چې آن دخبرو څو پړاونه هم پکې طی شول ؟

ديرغل په لومړيو کلو کې چې جهاد په ابتدائي مرحلو کې و ، امريکا يانو به داتاثر ورکاوه چې په کال يونيم کال کې به دوی خامخا جنگ پای ته رسوي، دا څو په شمار طالبان چې سرخوړ جوړوي ځيني به ووژني،ځيني به بنديان کړي اوځيني به تسليمېدوته اړباسي نو ر افغانستان زمونږ (امريکايانو) دی او ورکې به دخپلې خوښې نيلي ځغلوو اوبس!

خو لږوخت پس يې دا ارمان دسراب ليدل ثابت شول،ټول هېوادته جهاد وغځيد او مجاهدين پياوړي اومنظم شول لله الحمد نن په هېواد کې داسې ولسوالۍ او سيمه نشته چې هلته مجاهدين نه وي او پکې منظم جهادي تشکيلات شتون ونلري اويا پکې دخارجيانو او کورنيو گوډاگيو ککرۍ دهغوی په وينو کې نه رغړيږي! اوس پوښتنه دا ده، چې دا دومره لوی مقامت پرمخ بيول دڅوتنو کار دی که ديوملت دکردار مرهو منت؟ بلکې ددې سره د ټول ولس اراده ملگرې ده، ټول ملت پکې همکار دی، نو که هر کله کوم گام پورته کېږي هغه به دافغان ولس دملاتړ نه برخمن وي

دولس غوښتنه به وي! په موجوده وخت کې ملت دجهاد مسیر نیولی دی! څو اشغال پای ته نه وي رسیدلی دامریکایانو سره هر ډول جوړجاړي ملت ته دمنلو وړنه ښکاري، نو رازو دیته چې دامریکایانو سره سوله او خبرې پیلول یوه خورا لویه پراخه پروسه وي . کومه عادي او کوچنۍ قضیه نده، چې په دومره اسانه دي امکان ولري څنګه چې رسنۍ د څو اوونیو راهیسې ګردانوي

هرکله چې امریکان له افغانستانه وتلوته غاړه کېږدي او داعتماد سازۍ ټولې غوښتنې اومني بیا ممکن ورسره د ځینو مسایلو په باب غور وشي خو تردې مهاله چې امریکایان له اشغاله لاس نه اخلي امکان نلري چې دومره لویه قربانۍ او سرښندنې هدر حساب شي

او نه داده چې افغان ولس په جهاد کې ځان ستړی بولي تاریخ ګواه دی چې افغانانو تل پخپله خاوره کې بهرنیو عسکرو شتون ندی زغملی ، له چنګېز نه واخله تر انګریزه او بیا دشوروي ترسرو لښکرو پورې له هر ښکېلاکګر سره په قوي عزم جنګېدلي او دسترو قربانیو اوفداکاریو په بدرګه یې یرغلګرو ته دسر وپه کوپریو کې اوبه ورکړیدي. نن هم دامریکاېي ښکېلاک دشتون پرضد په هم هغه پخوانۍ دیني او ملي روحیه جهاد دوام لري هیڅکله به د دغسي پوچو تبلیغات خورول افغان ولس له جهادي مسیره ونه ګرځوي.

دغه وجه ده چې دافغان ولس لویه سلنه د روان جهاد څخه ملاتړ کوي اوپه سر اومال ورته ولاړدي.

هو! له شک پرته امریکا افغانستان کې دخپلې ماتې غچ اخیستلولپاره ګاونډیان ورسره کومک کولو ته مجبوروي او غواړي دهغوی په مرستو خپل وحشتونه وغځوي لیکن هغوی باید دا درک کړي چې امریکا ته په هرڅه کې خپلې ګټې مهمې دي د دوی دستونزو پروا نلري، سیمیزو ګټو او امنیت ته کوم ارزښت نه ورکوي، هغه څه چې امریکا په دیارلس کلو کې په جنګ سره ترلاسه نکړل، اوس هغه په اسانه ترلاسه کول غواړي،له نیکمرغه اسلامي امارت او افغان ولس دیته متوجه دی، اوپه اسانه اجازه نه ورکوي چې خپل دغه خواهش پوره کړي په دې لړ کې ګاونډیانوته هم ضرور ي ده، چې خپل مسئولیتونه درکړي او دحالاتو نزاکتونه حس کړي له امریکا نه دخیر توقع ونکړي ...

هغوی باید خامخا دا حس کړي چې په افغانستان د امریکا لخوا یرغل شوی دی، دافغانانو لخوا په امریکا یرغل ندی شوی، په سیمه او افغانستان کې خوره ناقرارۍ اوبې ثباتي دامریکا دراتګ زیږنده ده،ټول مسئولیت یې امریکا ته متوجه دی چې دیوجایز جکومت په ځای یې ناجایز حکومت کیناوه، نو اړتیاده چې ټول په ګډه امریکا دیته اړباسي چې هغه له افغانستانه ووځي او نه داچې هغوی دامریکا یې اشغال دپایښت سره همکارۍ زیاته کړي.. داکار هم دافغان ولس لپاره په زیان دی او هم دسیمې او منطقې دثبات لپاره ګواښونه رامنځته کوي...

لنډه داچې دا شته ټولې بدمرغۍ دامریکا له لاسه دي، دهغو په حسولوسره دافغانستان او سیمې دثبات پخاطر باید دزمکنیو واقعیتونه په درک کولو سره مسئوولانه ګامونه واخلي ، له شک پرته امریکا روان جنګ بایللی ، هغه دنور داوږدې جګړې حوصله نلري،د افغانستان زمکه وربانـدې تنګه ده آن دارګ په حدودو کې مجاهدین پرلپسې منظم عملیات اوبریالي بریدونه ترسره کوي

... هریومغل ته مې ښودلې ابدالي جذبه خو
افسوس! په دې چې هر ظالم ته مې خپل ورور ښملوي

# دحـــوثي باغيانوپه لاس دصنعاء سقوط

# اودیمن تاریک راتلونکی

حسن مومند

داخـــلي گـــډوډيواوبهرنيو لاسوهنوښکاردمنځني ختيځ مشهور مسلمان هېواد يمن کې دتېرکال ياني ۲۰۱۴م داگســت مياشــتې راهيســې دحـوثي باغيانوپيـل شـوي تحريـک بالآخره ديمن پرواک په بشپړې قبضې راوسـتلوکې کاميـاب اوديمـن دولـت ړنـگ شـو؛حوثيانو ړومبـې پـه راديـو بانـدې قبضـه وکـړه اوبيـايې صـدارتي محل ؛ دولتي ټول ستردفاتر اوپارلمان وداني ترخپل کنترول لانـدې راوسته اوپارلمــان يــې منحــل اعــلان کــړ اوڅـوورځې دمخـه دولسمشرعبدربه منصـورهادي اودلـومړي وزيـر خالـد بحاح داستعفاگانو ورکولوپه نتيجه کې چې کومـه تشـه رامنځتـه شـوې وه پـه ډېرچل اوهنرېې هغه تشه دخپل پـلان سره سم ډکه کړه .

صدارت ته يې يـوه پنځـه کسـيزه کمېټه جوړه کـړه چـې ترراتلونکـو دوه کلونوپـورې بـه دعبـوري دولـت ټـولې چارې پرمخ بيايې اودپارلمـان پرځـای يـې ۵سوه کسـيزه قـومي کمېټـه هـم اعلان کړه چې دړنگ شوي پارلمـان پـر ځای به دقانون جـوړونې چـارې پـرمخ بيايې .

حوثيـــانو دولسمشر پـــه کـــور دسپکواودرنووسلوپر مټ حملـه وکـړه خـو ولسمشرـته پکـې څـه زيـان ونـه رسېدلو.

داچې حوثي باغيان دزور له لارې پريمن دقبضې غوښتونکي وونو لا ډېـر وړانـدې يـې دحکومـت ړنگولـوپلان جـوړکړی وچـې اوس يـې عمـلي کـړ؛ دملگروملتونـو اداري دامنيـت شـورى داحملــه وغندلــه خودحوثيانومشر عبدالملک حوثي دولت په اداري فساد تورن کړ اوويې ويل چې دهېواد حالات ډېر حساس دي .

دولسمشرپرکورله حملې وړانـدې چې حوثيانودصدارت مانۍ قبضه کـړه دصدارت دخاص گارد مسئول ډگـرمن صالح الجمالاني داد دولـت دړنگېـدلو سره برابـره خـبره گڼلـې وه چـې بيـا همداسـې وهـم شـول ؛ ډېـر ژرلـومړي وزير او ولسمشر دواړو خپلـه استعفى وړانـــدې کـــړه چـــې دادی اوس حوثيانودزور له لارې زړه کابينـه ړنگـه اوخپل نوی دولت اعلان کړ.

دتېرکال په ستمبرکې هم ددولت اوحوثي باغيانوترمنځ نښتو کې دډېـرو ځـاني تلفاتودرامنځتـه کېدونـه پـس يوتړون رامنځته شوچې لـه مخـې يـې بايد حوثيـان دپلازمېنـې نـه وتـلي وای خو حوثيان نه يواځې داچې دپلازمېنـې نه ونه وتل بلکې دپلازمېنـې پـه سـني

مېشتو سیمو اودهېواد لویدیځوبرخو کې یې ځانونه ښه قوي کړل او اوس یې په مناسب فرصت کې دولت قبضه کړ.

یمن په لویدیځې آسیا کې واقع دمنځني ختیځ مشهور مسلمان هېواد دی ؛ شمال ته یې سعودي عربستان او شرق ته یې عمان پراته دي ؛ جنوب ته یې دعربو بحیره ده اوغرب ته یې سره بحیره اودعدن خلیج دی ؛ عربي یې ملي ژبه ده اوپلازمېنه یې صنعاء ده ؛ ۵۲۷۹۶۸ کیلومترمربع مساحت لري او په ۲۰۰۷م کال کې دترسره شویو سرشمېرو له مخې ددې هېواد نفوس له ۲۰ ملیونو نه اوړېدلی و ؛اوس ویل کېږي چې ددې هېوادنفوس ۳۰ ملیونو ته رسېږي ؛ په تاریخي لحاظ دادسبایانووطن ګڼل کېږي ؛ دحضرت سلیمان علیه السلام په زمانه کې دسباملکه بلقیس هم همد لته تېره شوی وه ؛ مسیحیت دلته په څلورمې عیسوي پېړۍ کې رارسېدلی دی ؛ ابرهه هم دهمدې یمن حاکم وچې په ۵۷۰م کې دی دخپل لښکر سره یوځای په هاتیانو سپاره دکعبې دورانولو لپاره راوتي اوهلاک شوي وو .

درسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کې یمن دډېرې سترې سیمې نه عبارت و ؛ عمان چې دجزیرة العرب یوستر هېواد دی دیمن برخه وه ؛ دسعودي عربستان مشهورښارنجران هم وړاندې دیمن جز و ؛ یو وخت حبشه اواریتېریا هم دیمن برخه وه .

دیمن عدن نومي لویه برخه وړاندې له یمن نه جدا اوتر ډېره وخته پورې دبرتانې مستعمره وه ؛ په شلمې مسیحي پېړۍ کې دلته برتانې قدم کېښود ؛ دیمن دشمالي برخې نه عثماني خلافت دفاع وکړای شوه اودهېواد دانیمه برخه ددې خلافت په ولکې کې پاتې شوه خوبرتانې ددې هېواد جنوبي برخه ونیوله ؛ چې د۱۹۶۷ پورې دبرتانې تراستعمارلاندې پاتې شوه ؛ په ۱۹۶۷ کې داجنوبي برخه دبرتانې داستعمار نه ازاده شوه چې بیاهمدا سیمه دجنوبي یمن په نوم په یو مستقل هېواد بدله شوه چې اشتراکي نظام وربانـدې مسلط و ؛ د دوه لسیزو کوښښونو نه پس د۱۹۹۰م کال دمی میاشتې په ۲۲ نېټه یې استقلال ختم ،دیمن برخه وګرځېده اوجمهوریة یمنیة یې نوم شو؛ په یمن کې همدانېټه اوس دازادۍ د ورځې په صفت لمانځل کېږي ؛ خو لکه څرنګه چې په یمن کې اوس حالات نازکه دي نو همدارنګه یې دا پیوند هم نازکه و .

پلازمېنه صنعاء دنړۍ له ډېروپخوانوښارونوڅخه ده چې دقدامت آثارېکي اوس هم لیدل کېږي ؛ په پخوانو زمانو کې دتجارت ډېر لوی مرکز تېر شویدی ؛ځنې تاریخ لیکونکولیکلی دي چې ددې ښاربنسټ دحضرت نوح علیه السلام لمسي غمدان بن سام ایښی و؛ داهم ویل کېږي چې ددې ښارپخوانی نوم ازال وچې دحضرت نوح علیه السلام په اولاد کې دکوم یوپه نوم نومول شوی و؛ وروسته چې دلته دحبشې خلک راغلل او ویې لیدل چې ددې ښارودانۍ دتیګونه جوړې شوي اوخوراقوي دي نوحبشیانو صنعه صنعه ویل شروع کړل چې په حبشي ژبه کې معنی داوه چې داښار ډېرقوي دی ؛ بس له همغې ورځ نه ددې ښارنوم په صنعاء بدل شو چې تر ننه په همدې نوم یادېږي .

داښارد ډېروپخوانوتهذیبونو مرکز تېرشوی خودرسول الله صلی الله علیه وسلم دبعثت پرمهال پرې دکسری دسلطنت واکمني وه اودکسری له لورې پرې بازان دوالي په صفت حاکم و ؛ همدابازان بیا وروسته په اسلام مشرف شو اورسول الله صلی الله علیه وسلم هم له خپل لورې د والي په صفت پرېښود .

درسول الله صلی الله علیه دمبارک حیات په وروستیوشپوورځوکې اسود عنسي نومي یومکارسړي دنبوت دروغجنه دعوه وکړه چې ګڼ شمېر ناپوهان یې په لوموکې راښکېل هم

شول او ورو ورو دومره قوي شوچې بالآخره يې حضرت باذان رضی الله تعالی عنه شهيد اوصنعاء يې قبضه کړه خوله نېکه مرغه چې داقبضه يې اوږده نه شوه ؛ درسول الله صلی الله عليه وسلم يومحبوب صحابي حضرت فيروز ديلمي رضی الله عنه چې ديمن اوسېدونکی و اسودعنسي يې وواژه اوصنعاء يې ترې آزاده کړه ؛ داد رسول الله صلی الله عليه ومرض الوفات شپې ورځې وې ؛ الله تعالی دوحي له لارې رسول الله صلی الله عليه وسلم ددې پېښې نه خبر کړ اورسول الله صلی الله عليه وسلم په خپلې مبارکې خولې مسلمانانو ته زېری ورکړچې اسود عنسي ووژل شو او فيروز ديلمي وواژه ؛ داسود عنسي دوژل کېدو نه تر ننه داښار دمسلمانانوپه لاس کې دی .

پخواني ولسمشرعلي عبدالله صالح چې ۳۳ کاله ددې هېواد پرواک قابض و په ملکي او فوځي ټولو سترو پوستونو يې دخپلې کورنۍ افراد مسلط کړي وو چې دواک په اوږدو کې ده اودده کابينې دهېواد ټولې شتمنۍ په ډېرې بې دردۍ لوټ کړيدي ؛ ددې ظلم تر څنګ بل ظلم داوچې دولت به دخپلوټولو سياسي مخالفينو سره دمفاهمت لار تل ردوله او دزور له لارې دهرې مسئلې دحل پاليسۍ يې خپله کړې وه چې له امله يې په ټول ولس کې ډېرې سترې ناهيلۍ خپرې شوې وې په ؛۲۰۱۱م کې چې ولسمشرپه قانو کې نوي ترااميم پيل کړل نوپدې وخت کې يولورته د ولس ناهيلي اوج ته رسېدلی وه اوبل لورته دعربوپه يوشمېر هېوادونوکې ددولتونوپرضدپاڅونونه هم شروع شوي ووچې ديمن ولس ترې هم الهام واخست اوددولت پرضد يې پاڅون وکړچې په نتيجه کې يې لويديځ پلوي ولسمشرعلی عبدالله صالح له له لری کېدوته اړشوخوواک يې دلويديځ اوعربوشاهانودخوښې سره سم خپل مرستيال عبدربه منصورهادي ته وسپارلوچې هدف ترې دامريکاپلوې اداري واک ته طول ورکول وونوځکه په ولس کې په دې بدلون ډېره ناهيلي رامنځته شوه ؛ نودا اداره چې دتېرې اداري نه هم زياته دفسادنه ډکه او دولس دحمايت نه دبې برخېتوب له امله يوه کمزورې اداره وه حوثي قبيلې ددې اداري دکمزورۍ نه په استفادې دتېرکال په اګست کې ددولت پرضدپاڅون وکړ اوپه لږوخت کې داپاڅون دومره قوي شوچې په ستمبرکې دصنعاء اودوه نوروښارونوپه نيولووتوانېدل .

يمن چې په شمالي او جنوبي دوه برخو ويشل شويدی په جنوبي برخې کې يې دحوثي قبيلې سره تړاولرونکوزيدي شيعه ګانو اکثريت دی؛ خوپه ټوله کې دوۍ ايله دهېواد ۳۰ سلنه تشکيلوي ؛ دهمدې جنوبي يمن دحوثي قبيلې زيدي شيعه ګانو ۲۰۱۴م کال د اګست مياشتې په منځ کې ددولت پرضد پاڅون وکړ،ددې پاڅون مشري دحوثي قبيلې يو ځوان مشر عبدالملک الحوثي کوله او پيل يې دعمران ولسوالۍ څخه شوی و؛ ددولت پرضد دلاريون لپاره ترټولو رومبۍ غونډه چې په همدې ولسوالۍ کې جوړه شوې وه ورته په وينا کې عبدالملک الحوثي وويل: ددولت تبديلي او دقيمتۍ او بې کارۍ له منځه وړل زموږ دوه سترې غوښتنې دي .

په پيل کې دولت ددوئ په غوښتنو غوږ نه و ګرولی ځکه چې ګومان نه کېدلو چې دا لاريونونه به دهېواد نورو برخو ته سرايت وکړي او ترپلازميني به راورسېږي خو چې کله دهېواد دمختلفو سيمو اوسېدونکي ددې لاريونونو سره مل او په لسګونو زره وګړي دهېواد پلازمېنې ته راټول،دپلازمېنې سترې لارې يې ترخپل کنټرول لاندې راوستې او د کورنيوچارو دوزارت په شمول يې يو شمېر دولتي تاسيسات محاصره کړل نو بيا ولسمشر عبدربه منصورالهادي پوه شو چې حالات مخ په خرابېدو دي نو دحوثيانو دواړه غوښتنې يې ومنلې؛هم يې داقتصادي پرمختګ او بې کارۍ دله منځه وړلو لپاره ځني

ګامونه پورته کړل او هم يې اعلان وکړ چې کابينه به ړنګه او نوې کابينه به جوړه کړي چې لومړی وزير به يې محمد مبارک وي اوپدې اداري کې به دټولو سيمو او قبيلو نمايندګي وي.

خو ددولت دا اعلان ځکه بې ګټې ثابت شوچې هم محمد مبارک دصدراعظمۍ قبلولو نه انکار وکړاوهم حوثيانو هغه مسترد کړ.

حوثيانو چې دولت کمزوری وليد نو غوښتنې يې لاپسې زياتې کړې؛ په صنعاء کې خپلو پلويانو ته دوينا پرمهال عبدالملک الحوثي وويل چې اوس زموږ غوښتنه يواځې دکابينې بدلون نه بلکې موږ اوس دجنوبي يمن خپلواکي غواړو.

ولسمشر عبدربه او نورو سياسي مشرانو چې کله ددوئ داغوښتنه دقانون خلاف وګڼله او په سختو ټکو يې رد کړه نو حوثي قبيله چې دحزب لانصار په نوم وسله واله ډله لري او دتېرو ۲۵ کلونو راهيسې فعاله ده دهمدې ډلې په زور يې دصدارت ماڼۍ او دلومړي وزير پردفتر هجوم وروړ چې ددولت دامنيتي ځواکونو په دفاعي ډزو کې نېږدې ۳۰ تنان ووژل شول او ګڼ شمېر ټپيان شول .

دحوثي قبيلې لاريون کونکي چې ترپلازمېنې رارسېدلي او بيا يې دکورنيو چارو وزارت محاصره کړی و، خبرو اترو ته يې غاړه نه ايښوده او مخ په وړاندې تلل ځکه چې دولت ددوئ پرضد دوسلې نه کارولو دريځ خپل کړی و خو ددولت دې دفاعي عملياتواوپه نتيجه کې يې لاريون کونکو ته دمرګ ژوبلې اوړېدلو داګټه وکړه چې کله حوثيانو ددولتي ځواکونو له لورې مرګ ژوبله وليدله نو خبرو اترو ته يې غاړه کېښوده اومذاکرات پيل شول چې دملګرو ملتونو مندوب جمال بن عمرو نومې تن ته يې دمنځګړيتوب چارې وروسپارل شوې؛مذاکرات څو ځلې دخنډونو نه سره مخامخ شول خو بالآخره داړتيا وړ توکيو دنرخونو په راټيټولو او دادارې په ړنګولو او دقومي دولت جوړولو دواړه اړخونه سلا او دا هيلې راپيدا شوې چې شايد ددولت ضد لاريونونه تم او په يمن کې دسترو ګډوډيو او کورني جنګ درامنځته کېدو مخه ونيول شي خو دا چې دزړه نه دواړه اړخونه مذاکراتو او دمذاکراتو پرېکړو ته ژمن نه وو نو دناکامۍ نښې يې ډېرې ژر راڅرګندې شوې.

اصل خبره دا ده چې يو اړخ هم دملي ګټو دساتنې په موخه مذاکراتو ته نه وو تيار شوی بلکې هر لوري دمقابل لوري دکمزوري کېدلو او دمذاکراتو له لارې خپلو موخو ته درسېدلو په تمه مذاکراتو ته غاړه اېښې وه نو ځکه يو اړخ هم دمذاکراتو نه پس په اخلاص اقدام ونکړ .

دا خو څرګنده خبره ده چې ترڅو دحوثي قبيلې خپل فرد يا يې دخوښې کوم تن دلومړي وزير په صفت نه وي منل شوی ترهغې حوثيان نه راضي کېږي نو ولسمشر که رښتيا هم دحوثي قبيلې بغاوت ختمول او دملې اداري جوړول غوښتای بايد ژر يې دا اقدام کړی وای ، خو ولسمشر دداسې تن نوم صدراعظمۍ ته وړاندې کړ چې ډېر ژر دحوثيانو له لورې مسترد شو اوترڅنګ يې پخپله بن مبارک هم ددې منصب قبلولو نه انکار کړی او ولسمشر ته يې خپل معذرت وړاندې کړی.

ولسمشر چې دلومړي وزير په تقرر کې دحوثيانو غوښتنې په پام کې ونه نيولې همدا رنګه يې دقومي اداري په جوړېدو کې هم دډېر ځنډ نه کار واخست او ترننه يې پدې اړه کوم اقدام ونکړ.

ددولت ترڅنګ ددولت مخالفين هم په خپلو خبرو ندي ولاړ ؛ سره له دې چې دمذاکراتو خبره رامنځته شوې وه خو بيا يې هم وسلې په ځمکه نه کېښودې او نه يې هم ددولتي تاسيساتو دمحاصرو او نيولو لړۍ ودرولې اونه هم دپلازمېنې پرېښودلوته تيارشول

دسولې دتړون نه دوه ورځې پس په پلازمېنې صنعاء کې دحوثيانو په لاريون کې يوپه بل پسې دوه چاودنې وشوې چې پکې له ۷۰ زيات تنان مړه او له ۲ سوه نه زيات ټپيان شول ؛ ددې دواړو حملو مسئوليت چې القاعده په غاړه واخستلو نو سره له دې چې حوثيانو دتړون ماتول اعلان نکړل خو په عمل کې يې ټول هغه څه وکړل چې له امله يې تړون بې معنی او په هيواد کې دشام په څېر دستر داخلي جنګ خطر مخ په ډېرېدو شو.

حوثي باغيانو الحديده نومې ساحلي ښار هم قبضه کړ؛پدې ښار کې دسمندري ځواکونو يوه اډه،يو هوائې ډګر او دالحديده بندر هم دوی ترخپلې قبضې لاندې راوست.

دبحراحمر په څنډه پروت الحديده ښار ددې ترڅنګ چې ديمن په سترو ښارونو کې شمېرل کېږي ډېر ستر ستراتيجيک اهميت هم لري؛دنفوسو شمېر يې ۲ ميليونو ته رسېږي ؛ دلته دهوائې ډګر او دسمندري ځواکونو ستره اډه شتون لري ؛ دسعودي عربستان سرحد ته ډېر څېرمه پروت دی او بندر يې دعدن دبندر نه پس ترټولو ستر بندر دی.

حوثي باغيانو دا ښار په ډېرې اسانۍ ونيولو او پرضد يې دفوځ يا دښار د اوسېدونکو له لورې هيڅ مقاومت ونه شو ځکه چې ولسمشر- عبدربه امر کړی و چې دحوثيانو پرضد دې ولس او فوځ دوسلوال مقاومت نه ډډه وکړي.

همدې دمقاومت نه شتون حوثيان ډېر زړور کړيدي نو ځکه يې دالحديده دنيولو نه پس اعلان وکړ چې ډېر ژر به مخ په وړاندې ولاړ شي؛ددې اعلان نه پس يې دسعودي عربستان دسرحد پرلور پرمختګ پيل او دسعودي عربستان پولې ته څېرمه حرض نومې سرحدي عسکري مرکز يې په ډېرې اسانۍ له فوځې ځواکونو نه ونيو لو.

دالحديده دنيولوسره يوځای دخليجي هيوادونو او منځنۍ ختيځ دچارو پوهانو ويلي دي چې الحديده ته دحوثيانو دتوجو او دبحراحمر دبندرونو دنيولو دهڅو نه داسې ښکاري چې دسنجول شوي پلان او دوی ته دورکړل شوي پروګرام له مخې حوثي باغيان غواړي چې دبين المللي تجارت خو راډېره مهمه سمندري لار باب المندب هم ترخپلې قبضې لاندې راولي.

په باب المندب دحوثيانو دقبضې راتلل ايران ته ډېره ستره ګټه رسوي نو ځکه زياتره شنونکي وايې چې دحوثيانو وروستني اقدامات ددوی په خپلې ارادې نه بلکې دايران په لمسون او دايران له لورې دورکړل شوي پروګرام له مخې شوي.

ديمن دولت خو دڅو کلونو راهيسې وائې چې ايران حوثي قبيله ددولت پرضد پاڅون ته هڅوي او غواړي چې ديمن اداره ړنګه او پرځای يې حوثيان واک ته ورسېږي ترڅو ايران پدې هېواد کې دخپلې خوښې حکومت له لارې په سيمې کې خپل نفوذ زيات او بې شميره سترې مادي ګټې ترلاسه کړي.

ديمن دولت دا هم ويلي و چې دولسمشر- له لورې صدراعظمی ته نومول شوی بن مبارک حوثيانو نه بلکې ايران مسترد کړ.

اوس چې حوثيانوصنعاء قبضه کړه پرايران نيوکې کېږي چې ددې هرڅه شاته يې لاس دی ؛ ايران داتورونه ردکړيدي خو په تېرو وختونو کې تهران ښه په ښکاره ديمن دتجزيې او په جنوبي يمن کې دحوثيانو دخپلواک دولت جوړېدلو حمايت کړيدی.

ځه وايم چې دحوثي شيعه ګانو نه دايران له حمايت نه هم انکارنه شي کېدای خويواځې دايران په ډاډ حوثيانو دومره ستراوخطرناک اقدامات نه شول کولای کوم يې چې وکړل ؛ دحوثيانوسره اصل ډاډ دامريکا دی ؛ دافغانستان اوعراق په شمول چې

امریکا داسلامي نړۍ په هرې برخې یرغل کړیدی نونه یواځې داچې شیعه ګانویې پرضد وسله نده راپورته کړې بلکې دامریکا سره اوږه په اوږه ودرېدلي هم دي چې دې کارامریکاته داپیغام ورکړیدی چې ګټې یې یواځې دشیعه ګانوواک ته درسولوپه صورت کې خوندي پاتې کېدای شي نوځکه اوس په عربي نړۍ کې ټولي نښې داسې ښکاري چې امریکا پر عربي نړۍ څومره چې کېدای شي دشیعه ګانو مسلط کول غواړي ؛ نودلته به هم ړومبی داکوښښ وکړي چې حوثي شیعه ګان واک ته ورسوي خوداکاربه ورته ځکه اسان نه وي چې دحوثیانو فیصدي پدې هېواد کې له ۳۰ نه اوړي نودوهم پړاوکې به یې هڅې دا وي چې دهېواد دزېرموغني جنوبي اوشرقي برخو دجدا کولواوپکې دحوثیانو دولت جوړولوته لاربرابره کړي .

شایدخلکو سره به داسوالونه پیداکېږي چې حوثیان که ایران ته وفادار وي نوترشا یې دامریکالاس څرنګه کېدای شي او په وجود کې یې دامریکا ګټې څرنګه خوندي کېدای شي ؟

خوداسوالونه ځکه دتوجو وړندي چې داضروري نده چې هرځای کې دې دایران اوامریکا ګټې په ټکر وي ؛ لکه په عراق کې چې ددواړوګټې په ټکرکې نه وې اوصدام حسین ددواړوشریک دښمن واودواړو یې په له منځه تللوکې خپلې ګټې لیدلې نوپه عراق کې دیوبل معاونین وو ؛ دلته هم چې القاعده دواړه خپل مشترک دښمن ګڼي اوحوثیان ترالقاعدې غوره بولي نویوبه دبل معاونت کوي ، نه مخالفت .

دسي آی ای یولوړ رتبه افسرمایکل ویکرز ښه په روښانو ټکوویلي دي چې تېرکال امریکا دحوثي ډلې سره روابط جوړکړل او ورته یې دمرستو اطمینان ورکړ؛ هغه زیاتوي چې حوثي ډله اوس په منځني ختیځ اوخصوصاً یمن کې دالقاعده پرضدجنګ کې دامریکا له مهمواتحادیانوڅخه ده ؛ دامریکا اوحوثیانو ترمنځ پټ تړون شویدی ؛امریکا ته دوفادارۍ په عوض کې امریکا حوثیانوسره هم استخباراتي معلومات شریکوي اوهم ورسره مرستې کوي ؛تېرکال په جون کې پر صنعاء دحوثیانوقبضه دامریکا اوحوثیانوترمنځ دجوړشوي ګډپلان په نتیجه کې رامنځته شوې وه .

مشهورې عربي رسنۍ الجزیره په خپلې ویب پاڼې کې لیکلي دي چې په یمن کې جنګ اوګډوډي دامریکا دمفاداتو زېګنده ده ؛ پیننتاګون یمن په شمالي ،جنوبي اوشرقي ۳ برخو وېشل غواړي ؛ امریکا دعراق په څېردیمن پرټېلودقبضې لپاره هم فوځونه راوستل غواړي چې داستقبال لپاره یې حوثیان تیارناست دي .

دا چې دعلي عبدالله صالح رژیم یو بې نظمه رژیم و،امنیتې اداري یې کمزورې وې،زیاتره ختونه به پکې دقبائلو ترمنځ جنګونه وو او تریو حده پکې فرقه یزې شخړې هم رواني وې نو یمن دالقاعده دپناه او ودې لپاره ډېر په زړه پورې هېواد ګرځېدلی و، القاعدې په ۲۰۰۰م کې په یمن کې سر راپورته کړ اوتر ۲۰۱۰م پورې یې دلته خپلې رېښې ښه مضبوطې کړې دسعودي عربستان او یمن ترمنځ غرنۍ سیمې دالقاعده لپاره ډېر خوندي پناه ځای دی او همدلته ګڼ روزنیز مرکزونه لري ، په ۲۰۱۱ کې چې په یمن کې شورش سر راپورته کړنوالقاعدې دګورنرۍ په شمول ځنې سیمې ترخپل کنترول لاندې راوستې اوپکې یې خپل امارت هم اعلان کړ ؛ وروسته یې بیا په جنوب ختیځوبرخوکې خوځښت زور واخست چې دولت یې دډېرومشکلاتوسره مخامخ کړ؛ القاعدې په ۲۰۰۰م کې یو ایس ایس کول سمندري بېړۍ باندې اوپه ۲۰۰۸ کې په یمن کې دامریکا په سفارت حملې کړی وې ؛ ۲۰۰۹م کې یې ډیټرایټ ته په تلونکي یوهوایي طیارې هم دحملې کولو هڅې کړی وې ؛دامریکا بې پیلوټه الوتکو دلته ګڼ

بریدونــه هــم کړیــدي چــې پکــې مجاهدینو ته ځاني تلفات هـم اوښتي دي خو چې مجاهـدینو دې سیمې تـه دجاسوسانو دراتلـو مخـه نیـولې ده نـو دلتـه دامریکـا دبـې پیلوټـه الوتکـو پـه بریدونو کې قیادت ته لوی زیـان نـدی رسـېدلی؛ امریکــا دلتــه یــواځې دانورالعـولقي پـه وژلـو توانېـدلی ده ؛ دالقاعدې دځپلو لپـاره امریکـا دیمـن دولت سره هم فوځي مرستې کوي چې دیمــن دولــت هــم دالقاعــدې پرضــد جنګ اعلان کړیـدی خـو دالقاعـده او دیمن ددولت ترمنځ تراوسه کوم لـوی جنګ ندی رامنځته شوی .

امریکــا پــدې تــازه ورځــوکې دالقاعـده دمشرـانو دسرونـو قیمتونـه اعـلان کـړل او هغـه چـا تـه یـې د ۴۵ میلیونه ډالرو انعام ورکولو ژمنه وکړه څوک چې دالقاعده دمشرـانو پـه بـاره کې امریکا ته خبر ورکړي.

نوپه همدې ورځوکې چې حوثیانو دالقاعـدې پرضـد دجنـګ ډګـر ګـرم کړیدی دحوثیانوپرضـد پـه سـنیانوکې هـم نفرت ډېرپـه تېـزۍ وده مـومي ؛ دهېـواد پـه جنـوب کـې چـې حوثیـان ځواکمن دي همدلته القاعـده دسـني قبـایلو دپـراخ حمایـت نـه برخمنـه ده اوالقاعدې ویلي دي چې حوثي باغیـان دامریکـا پـه حکـم راوتلي او دهمـدې امریکا دګټو لپاره جنګېږي نو دحـوثي باغیانو دپرمختګ مخه که نیسې همدا دیمن ځواکمنه القاعده به یې نیسې.

القاعـده چـې اوس دحوثیـانو پـه مقابل کې دجنګ ډګر ته راوتـې ده،پـه باره کې یې تمه هم دا ده چې دحوثیانو دپرمختګ مخه به ونیسيـ خـو دا کـار به دیمن د ولس لپاره له ځانه سره ښه زېری ونلـري؛ پـدې سره بـه یمـن کـې فرقه یزې شخړې زور واخلي ؛ دلته بـه هم سوریې ته ورتـه فضا قائمـه شي او یمن به په شمالي ؛ جنـوبي اوشرقـي ۳ برخو دویـش دډېـر جـدې ګـواښ سره مخامخ شي ؛ یمـن تـه داتـول خطرونـه یقیناًمتوجې دي خو متأسفانه پـه ټـولې اسلامي نړۍ کـې دومـره څـوک نشته چې دمخنیوي لپاره یې مناسب اقـدام وکړي.

## د برتانیې په لارو کوڅو کې

د برتانیې په لارو کوڅو کې ۲۵٪ سوالګري هغه پخواني برتانوي عسکر دي چې پـه افغانستان او عراق کې له خپل پوځي ماموریت څخـه وروسـته هیـواد تـه راستانـه شوي دي.
دغه عسکر د شپې لخوا د برتانیې په سړکونو، پارکونو او هدیرو کې تر شنه اسمان لاندې په سره ځمکه پراته وي.
کله چې کوم خبریال له دغو عسکرو څخـه غوښـتنه وکـړي چـې پـه افغانسـتان او عراق کې د خپل پوځي ماموریت په اړه څرګندونې وکـړي، نـو پـه داسې حـال کـې خپلې خاطرې او کیسې بیانوي چې ستوني یې له ژړا ډک او لـه سـترګو یـې اوښـکې بهیږي. په دوی کې داسې عسکر هم پیدا کیږي چې یو وخت په پوځ کې لوړپوړي افسران وه، خو اوس په مخدره موادو روږدي او څوک ترې دا پوښتنه هـم نـه کـوي چې دوړی یې خوړلې او که نه.
آرون چې پنځوس کاله عمر لري، د برتانیې د پلي ځواکونو عسکر وه، او اووه کالـه یې د افغانستان په مختلفو سیمو کې پـوځي ماموریـت سرتـه رسـولی، خـو اوس د لندن د جنوبي څنډې د «هوف» په سیمه کې د یو ګڼ سـړک پـر غـاړه ناست دی او ګدایي کوي.
آرون د الجزیرې خبریال ته ویلي چې قصدا غـواړي پـه پـوځي جامـه کـې ګدایي وکړي ترڅو خلک یې وپیژني چې پخوانی برتانوی عسکر دی، خو زیاتـه کـړې یـې ده چې تر اوسه یې له هیڅ حکومتي جهت څخه مرسته او کومـک نـه دی ترلاسـه کړی. د لندن په لارو، کوڅـو او پـارکونو کـې د دغـو عسکرو لـه ډلې څخـه ډیـرو ګدایي ګرو په سختې یخنۍ کې د تودو جامو د نشتون له املـه خپـل ژونـد هـم لـه لاسه ورکړی.
هغه عسکر چې په اصطلاح له تروریزم سره د مبارزې، دیموکراسۍ، بشرـي حقوقـو او د خپلو هیوادونو له علیا مصالحو څخه د دفاع په شعارونو غولـول شـوي او پـه افغانستان او عراق کې یې ګڼ مسلمانان بې کوره، شهیدان او پـه خپلـو وینـو کـې ولمبول، اوس په خپل هیواد کې سرپناه نه لري.

# د سولې په اعلانونو کې د جګړې او نفرت پیغام

په افغانستان کې غربيږي او تصويري رسنۍ د سولې په نوم ځينې پيغامونه خپروي. دوی په دغو پيغامونو کې له طالبانو غواړي چې وسله پر ځمکه کيږدي او په اصطلاح له دولت سره يو ځای شي ددغو اعلانونو سرچينه معلومه نه وي. اوريدونکي او ليدونکي نه پوهيږي چې دغه اعلانونه د چا له خوا کيږي. د معمول خلاف د اعلان په پای کې دا نه واضح کيږي چې اعلان کوونکي څوک دي؟ کابل دولت، د امريکا سفارت، د برېټانيا سفارت، بهرني ځواکونه، د سولې شورا او يا هم کوم بل ارګان؟ خو د اعلانونو په پای کې يوازې دومره ويل کيږي چې دا يو سوداګريز اعلان وو .

دغه اعلانونه ډېر حيرانوونکي دي. په ظاهره اعلانونه د سولې لپاره کيږي، خو اعلان له ځان سره د کابل دولت او بهرنيو ځواکونو د مخالفينو دريځ ننګوي. هغه په خپل اند غير اسلامي او د افغانستان پر ضد ګڼي.

دوی که څه هم اعلان د سولې لپاره کوي، خو دغه اعلان وسله وال او ان عامو خلکو ته د جګړې، نفرت او د دولت پر ضد د جګړې انګېزه ورکوي. د اعلانونو د سرچينو له نامعلوم وادرسونونه خلک پوهيږي چې دا اعلانونو د بهرنيو ځواکونو، سفاروتونو او USAUD له خوا رسنيو ته ورکول کيږي او رسنۍ يې د پيسو په بدل کې د سوداګريزو اعلانونو په نوم خپروي. د اعلان له ژبې، دريځ او پيغام څخه ښکاري چې دا اعلانونه څوک ورکوي. له دغو اعلانونو په اسانۍ سره د بهرنيانو او کابل د سولې هڅې معلومېدلی شي

. له همدې اعلانونو قضاوت کېدلی شي چې دوی د سولې په نوم څه غواړي او په سوله کې دوی څومره ربښتيني دي .ددې اعلانونو بل جالب اړخ دا دی چې ځيني ډيرور کسان په کې د ديني عالمانو په نوم را ښکاره کيږي .دوی د دين له اړخه خبري کوي، خو دين هغسې تفسيروي چې امريکايي ګټې ورسره خوندي شي .دوی په پوره سپين سترګۍ د ايتونو او احاديثو ناسمې معناوې او تعبيرونه وړاندې کوي. کله د قرانکريم د يو ايت يوه برخه داسې راخلې چې مفهوم او معنی يې ورسره تغير کيږي. ايتونه او احاديث نيمايي را اخلي او يا يې هم ناسم تعبيروي. د دوی بل ناوړه کار دا دی چې دوی د عباداتو په برخه کې او يا هم د کورنۍ ژوند د تنظيم په برخه کې راغلي...حديث او ايت سياسی برخې ته وړي او هلته يې هغسې تعبيروي چې د امريکا سفارت ترې غوښتنه کړې وي. په داسې حال کې چې په همغه موضوع کې ډېر روښانه احاديث او ايتونه شته او په اسانۍ سره په هغو رصيحو او روښانه نصوصو د دوی دغه استدلال ردېدای شي.

دغه دين پلرونکې د څو امريکايي ډالرو لپاره د قران ايتونه تحريفوي او غواړي د خلکو په سترګو کې خاورې وشيندي .خو اوس خلک پوهيږي، کله چې د قرانکريم ايت راشي او يا هم حديث وويل شي او بيا پسې وويل شي چې دا يو سوداګريز اعلان وو، نو خلک خپله پوهيږي چې دا څه لوبه ده. د قرانکريم له ايت او حديث څخه سوداګريز اعلان جوړ ل خپله همدا ښيي چې دلته سوداګريزه معامله ده، نه د کوم ديني مسئلې وضاحت. دغه تش په نوم عالمان د خدای په دين ډېره ناوړه سوداګري کوي، خو دوی بايد پوه شي چې له يوه اړخه يې دغه سودا په ولس کې اخيستونکې نه لري او له بله اړخه د خدای له هغه شديد عذاب سره مخ کېدونکي دي چې له دې وړاندې قومونه هم د کلام د تحريف د هڅې له امله ورسره مخ شوي وو.

# سیاست یک بام و دو هوای آمریکایی ها

حبیب الله یوسفزی

این روزها شاید کلمه "صلح" بیشترین کلمه ای باشد که در گفتارهای سیاسی سیاسیون اداره کابل و خارجی به تکرار گرفته می شود. همه از صلح می‌گویند و گویا قرار است از این کلمه زیبا نیز استفاده ابزاری بشود، همانگونه که در چند سال اخیر توسط اشغالگران و زیر مجموعه های آنها این کار صورت گرفته است و گویا قصد دارند با استفاده از این کلمه زیبا کمک کنند تا جنایتکاران بین المللی بیشتر از گذشته به خواسته های نامشروع و ناحق خود برسند. چون همان های که از صلح حرف می زنند بیشتر از هر کسی بنیاد صلح را در وطن تخریب کرده و می کنند.

همانها که صلح صلح می کنند، در عمل از همه بیشتر از این کلمه نفرت دارند، آنها که به نام صلح نان می خورند و آنهایی که به نام صلح میلیون ها دالر را بی جا و بی مورد به مصرف می رسانند در اصل نه اینکه مجاری صلح در وطن را تعقیب نمی کنند که حتی در برابر تحقق این رویای شیرین هموطنان عزیز ما موانع شدید ایجاد می کنند و چنان بین قول و عمل شان فاصله است که قابل مقایسه نیست!

آمریکا از یکطرف به رسانه ها خط می دهد که صلح افغانستان را در نشرات خود برجسته نمایند و افکار عمومی را تا می توانند با این کلمه رویایی مشغول بسازند؛ اما در عین حال وزیر دفاع خود را به افغانستان می فرستد تا زیربناهای تداوم اشغال خاک افغانستان را مستیقم زیر نظر گرفته و قوای هوایی و دفاعی نیروهای آمریکایی را بسنجد و راجع به چگونگی، کیفیت و کمیت خنثی سازی فعالیت های مجاهدان در ولایت قندهار و سایر ولایات افغانستان معلومات لازم را به دست آورده و با سران نظامی پنتاگون شریک بسازد. عجب است از سیاست های عجیب و غریب آمریکا!؟

سیاست یک بام و دو هوا که می گویند همین است که از یکطرف در رسانه ها جار بزنند صلح در افغانستان نزدیک است و از یکطرف مدام به دنبال تغییر استراتژی باشند؛ چنانکه چند سال پیش می گفتند ۲۰۱٤ آخرین سال تجاوزشان است و اکنون می گویند ۲۰۱٦ و ... گویا آمریکایی ها فکر می کنند که با اتخاذ این نوع سیاست های ضد و نقیض می توانند بیشتر از این، ملت بیدار افغانستان را فریب بدهند و یا اینکه می توانند روحیه مجاهدان را تضعیف نمایند یا افکار عامه را نسبت به مجاهدان بدبین بسازند و یا اینکه به بقایای عساکر شکست خورده خویش و نیروهای افسرده حال اجیر خود روحیه بدهند اما که خوشبختانه آمریکا به هیچ کدام از این مقاصد شوم خود نخواهد رسید و مثل همیشه و بلکه بدتر ناکام و نامراد خواهد ماند.

در حالیکه آمریکا از صلح حرف می زند و اداره دست نشانده و فاقد صلاحیت آن در کابل نیز به طبع چند روزی می شود این موضوع را محور گفتگوهای اولیه سیاسی خود در رسانه ها قرار داده و خود را پیام آوران صلح در افغانستان

معرفی می کنند؛ کسی نیست که از اینها بپرسد که اگر واقعا طالب صلح در افغانستان هستند؛ پس چرا به خواسته های به حق و به جای ملت نجیب و آزادیخواه وطن گوش فرا نمی دهند، چرا این به اصطلاح پیام آوران صلح به خواسته های اصلی و آرزوهای حقیقی تک تک افغانها ی باغیرت که همانا آزادی بی قید و شرط وطن، خاتمه اشغال، بازگرداندن عزت، استقلال وحاکمیت نظام اسلامی اند هیچ اعتنایی نمی کنند؟

آیا مگر ممکن است که صلح با زور و استبداد دشمنان دین و سر زمین افغانستان به وجود بیاید؟

مگر صلح با گدایی به دست می آید و آیا مگر ممکن است بخاطر صلح ارزشهای دینی و ملی افغانستان ها نادیده گرفته شوند؟ آیا زیر بمباردمان های شبانه و حملات طیاره های غول پیکر و بمب افک های مهیب و مخرب امریکا و ناتو، افغان ها می توانند امید صلح و آرامش را در وطن خود داشته باشند؟ آیا با تاکید مصرانه اداره دست نشانده کابل به حضور اشغالگرانه آمریکا و غرب متجاوز و امضای پیمان های شوم وطن فروشی، صلح در افغانستان می تواند بیاید؟

اصلا آیا با تداوم اشغال و تحقیر عزت نفس و نادیده گرفتن غیرت افغانستان ها و فرهنگ بیگانه ستیزی این ملت قهرمان جای سخن گفتن از صلح و عملی کردن این آرزوی آحاد ملت شریف باقی می ماند؟

به درستی که آنچه از سیاست های مغرضانه آمریکا معلوم می شود؛ آمریکا نه اینکه به دنبال صلح در افغانستان و خاورمیانه نیست بلکه خود بزرگترین مانع و چالش در راه ایجاد صلح می باشد و آنگونه که از تناقض گفتار و کردار آمریکا پیداست، آن کشور چنان صلحی در افغانستان می خواهد که منافعش درخطرواقع نشود و یا حداقل جنگ افغانستان به شکلی وانمود شود که شکست آمریکا و شرکای آن تلقی نگردد و یا به عبارت خیلی ساده صلح آمریکا یعنی تداوم اشغال و غلامی افغانستان و گرنه مگر برای امریکا شرایط صلح افغانستان ها معلوم نیست، اصلا آمریکا چگونه می شود خود را پیام آور و منادی صلح معرفی‌کند در حالیکه او خود با تجاوز آشکار و نقض قوانین بدیهی منشور ملل متحد در سال ۲۰۰۱ باعث آشوب و ناهنجاری در افغانستان گردید و در طول قریب به چهارده سال،بسیاری از افغانستان ها را به کشتن داد و وحشیانه و ددمنشانه، خانه بسیاری از افغانستان ها را بر سرشان خراب کردوباعث‌بروزکشت‌وکشتار در وطن عزیز گشت، مگر در مدت چهارده سال افغانستان های باغیرت و با شهامت جز بخاطر عزت و استقلال که همان صلح و آرامش واقعی است، رزمیدند و آیا مگر مجاهدان چیزی فراتر از حقوق برحق و شناخته شده خود در چوکات پذیرفته شده همه ملل دنیا خواسته اند؟

دشمن چگونه می تواند از یکطرف منادی صلح باشد و از طرف دیگر بر تداوم اشغال تاکید ورزیده و تنور جنگ و خونریزی را داغ تر از هر زمان دیگری نگاه دارد؟!

آمریکا و شرکای بین المللی آن و همینطور کسانی که در افغانستان از آنها دستور می گیرند باید تا حالا دانسته باشند که ملت غیور افغانستان هیچگاهی صلح تحت اشغال آمریکا را به صلح واقعی تعبیر کرده نمی توانند و غیرت شان با اینچنین سیاست های غلام صفتانه سازگار نیست، آنان ظلم و وحشت، بربریت و دهشت افکنی امریکایی ها را هیچ گاهی به چشم صلح نمی بینند، ملت نجیب افغانستان، فساد و وطن فروشی، غدر و خیانت به آرمان پاک شهدا، از موضع ضعف سخن گفتن و اظهار احتیاجی و وابستگی به دنیای با منت خارجی ها را هرگز صلح نمی گویند و نه هم زیر چتر چنین مصادیق زشت و نا زیبا آرزوی برآورده شدن صلح در کشور را دارند اما اگر کسانی واقعا خواهان صلح و آرامش افغانستان اند پس باید به خواسته های اصلی ملت بزرگ افغانستان گوش فرا داده و به درد واقعی افغانستانی ها واقف شوند و از ملت قهرمان افغانستان انتظار کاری را داشته باشند که در شان آن ملت بزرگ و تاریخ سرشار از حماسه های شان باشد.

به امید تحقق صلح و آرامش حقیقی برای تک تک هموطنان مظلوم

# دمهاجرينو له کړولو څوک خوند اخلي !!

خليل ـ عزم

پاکستان اوايران دافغانستان هغه دوه ګاونډي هيوادونه دي ،چې ميلونونو افغانانوته يې په ډيرسخت اواړين وخت خپله داستوګني غيره په پوره صميمت اواسلامي همدردي پرانيسته او دهمدغوګاونډيو هيوادونو مرسته اوهمدردي وه چې مجاهدينودسره ښکيلاک او کمونيستي رژيم په مقابل کې نيږدې يوه نيمه لسيزه رسااوباشهامته معرکه پرمخ بوتله اوپه پاي کې الله تعالی تاريخي بری هم دمجاهدينو نصيب وګرځاوه .

په دې خبره کې هم شک نه وو چې دسره ښکيلاک هدف تنها افغانستان هضمول نه وو ، بلکې دګاونډيو لاندې کول او په خاص ډول دپاکستان نيول او دهندسمندرګي ته ځان رسول يې خاص ارمان وو .

دتير جهاد مهال ذيدخله څيري په دې عقيده دي چې پاکستان په دفاعي اومعاشي لحاظ چې څومره پيشرفت وکړ، په هغو کې دافغان جهاد رول او اثرروښانه دي ، ځکه دغربي او اسلامي نړۍ مخ اورجحان هغه وخت پاکستان ته رامات اوواوښت چې له افغان مجاهدينو سره پاکستان اوږه پراوږه ودريد ، همدغه وجه وه چې نړۍ دپاکستان په لاس له افغان جهاد سره مرسته کوله ، په هغه برسيره ، غرب او عربي دنيا له پاکستان سره ددې لپاره چې افغان جګړي نوموړي هيواد متاثره کړي او له خطراتو سره لاس اوګريوان دي ، نو بې کچې مالي اوپوځي کمک يې هم ورسره کاوه

په هرصورت ، دا اوږدې اودتيروخت خبري اوتاريخي پراوونه دي ، چې سپړل يې کومه ګټه نلري او نه کوم درد دواکولاي شي .

اصلي خبره په پاکستان کې دافغان مهاجرينوده ، کوم افغانان چې په پاکستان کې دمګړي ميشت دوي عمدتا هغه وګړي دي ، چې له ډيرې بدې ورځي او انتهايي مجبوريت نه هلته تللي او کلونه کلونه پاته دي ، په دې معنا چې ياد مظلوم وګړي د هغو جګړو اويرغلونو له ويرې يې پناه وروړي چې دنړۍ زبرځواکونو او دهغوي ګوډاګيانودتيرو ۳۵ کلونوپه اوږدو کې په افغان ټاټوبي ترسره کړي او په ميلونو بې وسه افغانان يې ديته مجبورکړي چې خپلې کوډلې ، جونګړي او کورونه پريږدي .

همدغه علت دي چې نه نړۍ او نه هم دکابل بيلابيلو رژيمونو دافغان مهاجرينو بيرته تګ اويا دهغوي دژوند دهوسايي او سوکالي لپاره دتيرو دريو لسيزو په اوږدو کې هيڅ ونکړل ، نه يې دهغوي دروزګار پوښتنه وکړه ، نه يې دنوي نسل دښووني اوروزني غم وخوړ اونه يې هم ددې خبري پلته

وکړه چې له افغان مهاجرینوسره دکوربه هیواد چال چلند څه ډول دي .

په خاص ډول له تیرو ۱۴ کلونو راهیسي چې افغانستان ته ملیاردونو ډالرراغلل ، په حساب یو میلون ډالرهم دغه محروم قشرته چاڅانګړي او مختص نکړل ، سره لدې چې دکډوالو په نامه دکابل دولت لوي وزارت او په هرولایت کې مستقل ریاستونه لري او هم په نړیوال میدان کي دUNHCR اونوربې شمیره سازمانونه هم موجوددي ، خو دافغان کډوالو په حق دوي هیڅ برنامه نه درلوده اونه یې لري ، صرف دیوه شعار تربریده دافغان کډوالو دبیرته ستنیدني نومونه اخلي او په همدې پلمه لوي فنډونه او بودیجي هضموي .

ګاونډي هیوادونه هم دافغان مهاجرینو له دغه دربدره اوبې سرنوشته حالت څخه ګټه پورته کوي او حتی دیوې سیاسي حربې په توګه ترینه استفاده کوي ، په دې تعبیرچې کله ګاونډي هیوادونه اړتیا ووینې ترڅو په کابل یو نوعه فشار وارد کړي ، نو سمدلاسه دافغان مهاجرینوپه څورولو لاس پوري کړي او داتبلیغات پیل کړي چې افغان مهاجر په دوي نور شدید بوج دي ، شتون یې دهغوي په معشیت اوامنیت بد اثرات لرلي او غواړي چې ژر ترژره هغوي له خپلې خاوري وباسي .

داچې په رښتیا هم افغان مهاجر و کوربنو ته اقتصادي اوامنیتي ستونزې جوړې کړي ، دا اړدو بحث او ژوره څیړنه غواړي ، خو څومره چې له ظاهره ښکاري ، افغان مهاجرین ددې لپاره چې ارام ژوند ولري ، هیڅکله دیته زړه نه ښه کوي چې جرمونو ته لاس اوږد کړي ، که په زرو تنو کې څوک دا زیاتې وکړي ، هغه په هیڅ معنا دټولو مهاجرینو استاځیتوب نشي کولای .

بله خبره داده چې دافغان مهاجرینو څو نسله په پاکستان کې وپایدل هلته یې تعلیم حاصل کړ ، دهغه هیواد په قوانینو او اصولو وپوهیدل ، نو هغوي څه اړتیا لري چې خپل ارام ژوند ناارامه او په لوي لاس ځانته مشکلات پیداکړي .

همدارنګه افغانان په پاکستان کې داسې ندي چې لاس ترزني ناست دي او تیاره اوپخه مړۍ یې خلک په خوله کې ورکوي ، بلکې هغوي سخت تکلیف باسي او د لاس دتناکو په مټ خپل اهل اوعیال ته نفقه ګټي. یعني مهاجرو ته دمهاجر په صفت هیڅ داسې کوم سهولت نشته چې یا نړیوالو موسسو ، یا دکابل دولت اویا خپله پاکستان ورته دکار او روزګار ، تعلیم اوصحت په برخه کې بنیادي اسانتیاوي برابري کړي وي .

خوپه هغه سربیره چې افغان مهاجر دسیاسي لوبو ښکار ګرځي اووخت په وخت یې په تاو کې کړیږي ، نوفکرکوو چې داددغه دربدره اوبې سرپوښه پرګنوپه حق کې لوي زیاتي او له ټولو انساني نورمونو څخه خلاف کار دي.

په دې ورستیو کې دپاکستان دخیبرپښتونخوا ایالت په یومکتب کې ډیره بده پیښه رامنځته شوه ، چې په ترڅ یې له ۲ سوو زیات زدکونکي په خورا بیدردي ووژل شول ، چې پړه یې دپاکستان دتحریک طالبان ډلې په غاړه واخیسته ، ویل کیږي چې دنوموړې ډلې مشر، ملافضل الله په افغانستان کې اوسي .

افغانان له لویه سره اوافغان مهاجرین په ځانګړې ډول په نوموړې پیښې دزړه له تله غمجن او تراوسه پرې افسوس ښکاره کوي ، خو متاسفانه چې دخیبرپښتونخوا ایالت دنوموړي پیښې په تاوو او غبرګون کې تربل هرچا زیات خپل زړه په افغان مهاجرینو تش کړ او ډنډه یې ورپسې راواخیسته چې دوي به ارومرو له پاکستان څخه ووځي !!

ویل کیږي چې تراوسه په زرګونو افغانان دپولیسو دچاپو په ترڅ کې نیول شوي او دجیل له کافي ورځو تیرولو ورسته په

تـورخم اړول شـوي، همدارنګـه پـه زرګونـه کـورنی دیـوه جدي حکم له مخې اړایستل شوي چې په دې سره اوکړونکې ژمې کې افغانستان ته واوړي ، په داسې حال کې چې داکټرو کورنیو سره دلاري دتګ لګښت اوکرایه هم نشته او هره کورنی داوایي چې په قرض او چنده یې لاری کرایه کړي .

دلته په افغانستان کې هم نه ددولت اونـه دموسساتو لـه لوري کومه تابیا اوچمتوالی شته چې لږ ترلږه لس زره افغـانی هم دکورنی په سر ورکړي ترڅو خپلو ویجاړو جونګړو تـه پـرې ځانونه ورسوي .

اوس پوښتنه داده چې کـه پاکستان داکـار کـوي او افغان مهاجر په وچ زور او زبردستي سره له خپل هیواد څخـه شـړي او ټول نړیوال قوانین ترپښو لاندې کـوي نـو دوي پـوه شـه او خپـل کار یې ، شاید دوي ټول جوانب سنجولي وي او نـور یـې غوښـتي وي چې خپل ۳۵ کلن کوربه توب ته دپای ټکي کیږدي او ددې خبري شایدهیڅ پروا ونلري چې پـه زوره ویستل شوي مهاجربـه له ځان سره څه ډول خاطري یوسي !!.

ولـې دپوښـتني اصـلي ټکـي دادي چـې دادنـړۍ ددوهم متفکر ! ضمیره اووجدان که فرض کـړه وې لـري ولـې پـه تحرک نـه راځـي ، ایـا هغـه نـه وینـي چـې هـره ورځ پـه سوونه افغانـان اوبې اسري کـډې پـه تـورخم پـه کـوم حالـت رااړول کیږي ، دوي دیوه دولت صفت دغې تراژیـدي تـه څـه ځواب او چمتوالي لري ؟

مایه دې برخه کې ډیرسوچ وواهه او دکابـل لـه زیدخلـه چاروا کو او بشري سازمانونو څخه مې دیـو لـږ زرایعـو پـه مـټ پوښتني وکړې چې داشرف غني دولت ولې دافغان مهـاجرینو په حالت ځان نه خبروي ا و په دې برخـه کـې مناسب اقدام نکوي ؟ اولږ ترلږه کوم لوړپوړي پلاوي دغې موضوع تـه نـه ګماري ؟ .

باور وکړي چې دغو ټولو سرچینو او باخبرو حلقو همدغه یوځواب بیرته راوړي ، چې پاکستان داشرف غني پـه غوښـتنه په افغان مهاجرینو پسي کوتک رااخیستي ، تـردې چـې تـیره میاشت اشرف غنـي اسلام اباد تـه سفر کـړي وو ، پاکسـتاني واکمنو ته یې په صراحت ویلي وو چې ترڅو تاسې داسې فضا برابره نکړي چې په تـرڅ کـې یـې مهاجر بیرتـه راستانه شي ، زمونږ په ویلو او بلنو هغو ي نه راځي .

نه پوهیږو چې داشرف غني مطلب به له افغان مهـاجرو څخه هغه افغاني طالبان وي چې دطالبـانو لـه تحریـک سره خواخوږي لري ، که بل څه؟

کـه خـبره همداسـې وي ، اشرف غنـي ځکـه تـیروتي دي ، چـې افغـاني طالبـان دافغـان مهاجرو پـه منـځ کـې پـه وړو کې دمالګي هومره ځاي او شرکت لـري ، لـه بلـې خـوا دژمـي موسم ختمیدو ته یـوه میاشت پـاتې ده ، افغـاني طالبـان هسې هم یوه میاشت ورسته داخل ته راځي ، اصلي غـم او نـاورین پـه افغان مهاجرو پسې ده اوپاکسـتاني پـولیس خـو دیتـه نـه ګـوري چـې تـه طالـب یـې کـه عـام افغـان ټـول پـه جیلونـو نښاسي اوپه تورخم یې رااړوي .

کـه رښـتیا هـم دافغـان مهـاجرینو دځورولـو ترشـا لـه پاکسـتاني پولیسـو سره داشرف غنـي خوښـه او موافقـه وي ،لکه چې همداسې بریښي ، نو بیا خو موضـوع روښـانه ده ، چـې اشرف غنـي پـه پاکسـتان کـې دافغـان مهـاجرینو پـه وړانـدې څـه ډول خصومت پـه زړه کـې لـري ، داخـو لا ړومبي پړاو دي چې له پاکستان څخـه یـې افغانـان دپولیسـو پـه کوتـک دتـورخم پـه پولـه پـه ځـومره کـړاوو راواړول ، داشرف غني دچرسي عسکرو وار او نوبت خو پاتـه دي ، چـې هغـوي بـه لـه مهاجرینو سره دلتـه ه داخـل کـې کـوم ډول چلند اوکینه په پلان اوپام کې لري ؟

# د ښځو د ورځې په پلمه

قدرت الله ـ ل

په افغانستان کې په تیرو ۱۳ کلونو کې څو کارونه شوي دي. یو د ښځو وزارت او بل د ښځو ورځې او د دوی په نوم د ځینو ادارو جوړیدل او یا هسې رسنیز هیاهوی اچول، تر ډیره شته نظام دا کړنې په تیرو لسو کلونو کې ستري لاسته راوړنې بولي،په کابل کې د نارینه وو له لورې د ښځو د چادرې له په سرکولو بیا تر زرهې وسایلو اغوستو پورې دا هغه نوې پیښې دي چې په تیرو څوورځو کې په رسنیو کې ښې گرمې تاوېږي.

نن د مارچ اتمه ده او په ټوله نړۍ کې دې ورځې ته د ښځو ورځ نوم ورکول شوی دی، په نوره نړۍ کې ښځې د خپل هیواد له اصولو سره سم خپل حقوق لري، دا چې دوی له دیني پلوه بیل او اسلامي نړۍ بیله ده په دې باندې بل بحث شوني دی خو په اسلامي نړۍ کې له ښځو سره په روان زیاتي کې ستره ستونزه په اسلامیت یا خاوره کې نه بلکه په خرافاتي کړو وړو پورې تړلې ده، او ان ننۍ مبارزې هم خرافاتي دي ځکه له نورو راغلي نومونه په یوه ټولنه کې چې ۹۹ سلنه یې اسلامي وي کومه پایله نه لري.

له ښځو سره کلونه کیږي د زیاتي خبرې کیږي د بشري حقونو کمیسیون، د بشري حقونو سازمان او د ښځو د حقوقو د دفاع په نوم ادارې یې تشې غندنې یا ستاینې کوی ولې دوی په تیرو ۱۳ کلونو کې د میلیاردونو ډالرو په لگولو سره یوازې په دې نه دي بریالي شوي څو ددې ستونزواصلي لوری ومومې.

د بیلگې په ډول په مزار کې نشه یان له ښځو غوړونه پرې کوي، ادارې یې غندي یا شونې ده یو نیم پکې بندي هم شي خو تر اوسه ورته حل لاره نه ده موندل شوې،یا په زوره جنسي تیری، له قانوني سن پرته ودونه او په بدو کې ورکړې اوس هم د هیواد په ډیرو ځایونو کې روان دي، ولې په کابل کې یوازې غندنې کیږي، نن تاسو ولاړ شی او د مارچ له لومړۍ بیا تر پای پورې درسره حساب ونیسی، څومره گران بیه هوټلونه به په کرایه شوي وي، څومره پیسې به په دې ورځو لگول شوي وي او یا به څومره پیسې په تبلیغاتو، بیلبوردونو او نورو لگول شوي وي خو هیڅوک دا پوښتنه نه کوي چې ددې کړنو گټه به څه وي، زه چې گورم هیڅ ځکه نه یوازې د کابل ښځې د افغانستان د نورو ښځو استازې دي او نه هم نورې ښځې په دې پردي او خرافاتي فرهنگ باور لري.

په افغانستان کې تل افراطیت راج چلولی دی،له سیاسته تر مذهبه، بیا تر ټولنیزو کړو وړو او پردیو له منلو پورې نن هم همدا افراطیت روان دی، موږ نه شو کولای په کابل کې لس ښځې چې د ځان لپاره د پروژو په موخه ناستې جوړوي د ښځو ریښتوني استازې وبولو، هغې چې د ښځو د حقونو لپاره یې زرهې وسایل اغوستي و دې په ایران کې زده کړې کړې دي، ښه ژوند لري په دې نوم له څو ځایونو معاش اخلی او په همدې زرهې وسایلو یې هم زرگونو ډالر تر لاسه کړي دي او په بهر کې د ژوند لپاره د

کيس په هڅه کې ده، هغه چې د ښځو په نوم يې چادرې اغوستې دوی هم پروژې کسان دي، له سفارتونو پيسې اخلي،په دفترونو کې کارونه کوي او دوی کوښښ کوي د پردې تر شاه د يوې منحوسې پروژې يوه برخه وي.

تر اوسه نه په ولسي- جرګه کېد ښځو ريښتونې استازي شته، نه هم د بشري حقونو په کميسيون کې، کاش يوه سروې شوې وی، دوه پوښتنې شوې وی: (آيا دموکراتيک او پردي حقوق غواړئ؟ که اسلامي او له افغاني ارزښتونو سره سم؟) ددې سروې پايله ډير ژر راوتله په کليو کې به ښځو خپل نظريات ورکړي وی بيا به پاليسي جوړه شوې وی، خو دلته داسې نه کيږي لکه څنګه چې سياستوال اوبو خړوي او ماهيان پکې نيسي- زموږ د حقوقو مدافعين هم همداسې دي، که چيرې ښځو اسلامي حقوق غوښتي وی نو دلته خو په دوی د سفارتونو پروژې دريږي نو دلته دوی کوښښ کوي د اوبو خړولو پاليسي ښه په درز کې وچلوي، د ښځو وزارت تر اوسه هيڅ ډول اجراييوي صلاحيت نه لري يو سمبوليک شی دی خو يوازې د پروژو او ځينو پتلون کړو ښځو لپاره د ځان ښودنې او واک تر لاسه کولو ښه مرکز دی.

کاش په هغو سيمو کې چې دولتي حاکميت دی ښځو ته حق ورکول شوی وی، له ښځو سره تر ټولو ډير زياتی په کابل کې کيږي، بل تر ټولو ډير زياتی په بغلان، تخار او مزار کې چې دولتي حاکميت پکې پياوړی دی کيږی دا زياتی بيا هم د حکومت کار دی، که د ښځو د حقوقو خبرې کيږي ولې په کابل کې په ودونو کې د زرګونو ډالرو د لګښت مخه حکومت نه نيسي، که د ښځو د حقوقو خبره کيږي ولې دولت د يو وکيل د ورور له لوري پر يوې ميرمنې د جنسي تيري پيښه جدي نه څيړي، دا ټول هرڅه روښانه دي، دلته انسانيت ته دومره کار نه کيږي لکه څومره چې وحشت ته کيږي.

دوی اوس کوښښ کوي په ننداره ايزو کړنو سره يوازې څو ښځې خوښې کړي، هغه چې د ښځو په برخه کې د لاسته راوړنو خبره کوي دوی دې راشي حساب دې وکړي چې ددې لاسته راوړنو ښې ګڼې ډيرې دي که بد ګڼې، وګورئ اسلام زده کړه په ټولو فرض کړې، خو داسې نه لکه نن تاسو به هغه ورځ اوريدلي وي په کابل پوهنتون کې په يو پوهنځي کې يوه نجيلۍ د بريا په پلمه تشناب ته بيول کيږي او جنسي- تيری پرې کيږي که چيرې اسلامي ماحول وی، درسونه يې بيل وی، پوهنتونونه بيل وی چا به پر دې بيچاره جنسي تيری کړی وی او بل تيری کړی چا دی خو تيری کونکی هم د دولت مامور و.

په افغانستان کې هرڅه ډنډورې ته ورته ډي نن سبا تر رښتيا خبرو دروغ ډير ويل کيږي، زه په مارچ باور نه لرم، زه خپلې ښځې ته ټول هغه حقوق چې اسلام ورکړي دي ورکوم يې او ور کړي مې دي، له دې سره سره چې په ما د پيسو په بدل کې خرڅه شوې ولې زه اوس پرې له سره تير يم دا ځکه چې زه يو لوري ته انسان او بل لوري ته د داسې يو دين پيرو يم چې د ښځو سره د زياتي پر ضد لومړنی غږ د همدې دين راوړونکي حضرت محمد صلی الله عليه وسلم پورته کړ، نيم دين د بي بي عايشي- پر مټ بشپړ شو، زه وايم ښځو ته بايد تر ډيره د اسلامي حقوقو په برخه کې مبارزه وشي، ډيرې څوخښتونه او علمي مرکزونه مسوليت لري چې په دې اړه سروې ګانې وکړي طرحې تياري کړي څو نور موږک له پروژوي او هوټلي افکارو را و وزو او په ريښتوني افغاني او اسلامي افکارو سمبال ټولنه ولرو، ننی ناستې شونې ده له ذهني پلوه د ډيرو کورنيو سکون له ګواښ سره مخ کړي، ځکه يو لوري ته په هوټلونو کې ناستې ميرمنې او شعارونه او بل لوري ته محروميت دا په خپل وار سره افراط دی او په دې افراط کې هم دا پروژوي هغه شريکان دي.

ليکنه: مولوي صديق الله مشال

# ترسروکرښو مه اوړئ

يـوه روځ لـه يوخـواړه ملګـري سره مېلمــه وم دتاوده بانداړپه تـرځ کې داخـبره منځتـه راغله چـې بايـداجتماعي خدمتونوتـه ترځـاني خـدمتوداوليت درجه ورکړوده په خنداسره راتـه وويـل :مشـال جانـه !ساقيارصـاحب ويـل :دټـولني هرکارتـه چـي وګـورم دومــــره خــراب وي چـــي نـــوره پرهيچادهغـــه دسمولوبروسه راپاته نشي له ځانه سره ووايم چي ددې کاردسمښت له پـاره خـپلي متـي رابډوهـه خـوزه يوکارونه سل دي څه وکړم.

ددرانه شاعرساقيارصاحب خبره مـي هغـه مهال سترګوته جګه ودرېـده چـي يـوه ورځ ديوليکوال پـه شخصي کتابتون کي ګرځېدم کتابونه مـي پرلـه اړول رااړول چـي بـالاخره پريوکتـاب پـېښ شـوم چـي دخندانوم يې ورباندي ابښی وو اوټوکي ټکالي يې په کښي راغونډي کړي وې (جهاني )تقريظ ورباندي کړی وولیکوال ،کتـاب اوخنـدادرې واړه يـې پـه لـوړه کچـه ستايلي وولیکوال يوداسي څوک ووچي خپله قيمتي ځواني يې بشپړه په غرب کي تېره کړې وه کتاب چي مي پرله واړاوه باور وکړئ دځينوټوکوپه لوستلوسره له ځانه وشرمېدم موراوپلارداسي پـه کښي انعکاس شوي وولکه بيزوګيان چي بايـدتل مسخرې ورپـوري وشي دېرافسـوس پـردې راتـه ودرېـدچي يومسلمان ليکوال ولي دومره له اسلام اودمور،پلارله درانه مقام څخه ناخبره وي ؟!

بــــل دحسر ــــت وړخـــبره داده چــــي دمسلمانانودنشر اداري ديوڅوپيســـوپه لالـــچ ولي داسي سپکې ورکې ليکنې نشروي اواسلامي ټولني ته زهـــرجن اواســــلامي روح وژونکــــي څــــه ايجاداوتکثيروي؟!!

داسمه ده چي په اسلام کـي خوشطبعي ،ورين تندی ستايل شوی لکه ددې خبري داثبات له پاره چي موږدحضرـــت محمدصـــلى الله عليــــه وســـلم داويناوړاندي کولی شو: إِنَّ مِنَ الْمَعْـرُوفِ أَن تَلْـقِيَ أَخَـاكَ بِوَجهٍ طَلقٍ .

ترجمه:لـه نيکيوڅخـه يـوه داده چـي لـه خـپـل وروروسره په روښانه څېره مخامخ شې .

همدارازکه موږداسلام دمخکښانوکړه وړه مطالعه کړونوداخبره به راته جوته شي چي په وړوکي دمالګي په اندازه خنداا‌وټوکي ټکالي په اسلام کي ځای لري موږدامنوچي خندادژوندمالګه ده لکه مالګه چي دخوړوخوندسموي خنداهم په ژوندکي هغومره اړینه ده اودژوندخوندپرې سمیږي که یوڅوک هیڅکله نه خاندي هغه کس اسلام هم هغه خوړوته ورته بولي چي مالګه په کښي نه وي اوداسي څه د فشار په رنځ اخته مجبوروخوراک وي دټولني سالم وګړي يې نه خوري .

۱ــ حضرت محمدصلی الله علیه وسلم ته یوکس راغلی اودسفرسوارلی يې ورڅخه وغوښتله حضرت محمدصلی الله علیه وسلم ټوکه ورسره وکړه ورته ویې ویل:اوس به دي داوښې پرزوی سپورکړم .

سړي ورته وویل:کوچنی جونګی نوڅه کوم ؟

حضرت محمدصلی الله علیه وسلم :لوی اوښ هم له اوښې زیږي ياني لوی اوښ يې ورکاووخوټوکه يې ورسره وکړه دمسلمان خاطرجويې يې هدف وه .

۲ــ حضرت عمرفاروق رضی الله عنه یوه ورځ حضرت محمدصلی الله علیه وسلم ته په داسي حال کي راغلی چي نوموړی خپلومېرمنوته له دې کبله په قهرووچي هغوی په تکرارسره دنفقې دکثرت غوښتنه ورڅخه کړې وه

عمررضی الله عنه ورته وویل :تاموږلیدلي وه کله چي موږ په قریشي ټولنه کي اوسېدوپرمېرمنوپیاوړي وو کله چي به زموږله یوتن څخه مېرمني دخوراکي توکي غوښتنه وکړه هغه به ورولاړشوترغاړه به يې ونیوه خوچي مدینې منورې ته راغلوله یوداسي قوم سره مووا‌ړول چي مېرمني پرغالبي دي زموږمېرمنوهم ددوی دمېرمنوخویونه زده کړل پرموږغښتلي شوې

نبي کریم صلی الله علیه وسلم پرې وخندل .

۳ــ امام ابوحنیفه رحمة الله علیه ته یوساده سړی [چي پیسې يې یوځای پټې کړې وې اوبیاهغه ځای ورڅخه هېروو]راغلی اودخپل مشکل په اړه يې شکایت ورته وکړابوحنیفه رحمة الله علیه ورته وویل :داخویوفقهي سوال نه دی چي زه اجتهادپه کښي وکړم ولاړشه نن ټوله شپه تهجدوکړه .

سړی ولاړچي پرلمانځه ودریددشپې څلورمه برخه لاپوره نه وه تېره شوې چي دلمانځه په جریان کي هغه ځای وریادشوچي ده پیسې په کښي ښخي کړې وې امام ته راغلی اوحال يې ورته بیان کړ امام ابوحنیفه رحمة الله علیه ورته وخندل اوورته ویې ویل :زه پوهېدم چي شیطان دي دېته کله پرېږدي چي بشپړه شپه لمونځ وکړې هغه ځای يې دریادکړکاش دي بشپړه شپه الله جل جلاله ته دشکردپاره پرلمانځه تېره کړې وای .

۴ــ امام شافعي رحمة الله علیه یوه ورځ ناجوړه وودربیع په نامه یوشاکردېې خدمت کاوه شاګرد ورته وویل :استاده !

امام شافعي رحمة الله علیه وویل :ربیعه !ضعیف یم .

ربیعه:الله دي ضعف قوي کړه .

امـام شـافعي :تـوکـه وربانـدي وکـړه نوبیاخومي وژني ځکه اوس خوتنهاضعف دی چي قوي هم شي نوبیابه یې څنګه برداشتوم .

لـه پورتـه نمونوڅخـه موږدامعلومـولی شـوچي پـه اسلام کي وریـن تندی دلجـویې اویـوه انـدازه خنـداځای لـري ؛کـه څـوک پـه ذکرشویوبیلګواستدلال کوي بې سراوسروابښي هرڅــه چـــي پرخولــه ورځـــي وایــې یـــې دانوبیاسـتره تېروتنـه ده ځکـه پـه اسـلام کـي خنداته حدټاکل شوی لکه حضرت محمدصلی الله علیه وسلم چي فرمـایې (إن تَعلَمُـونَ مَـاأعلَمُ لَضَحِکتُم قَلِیلاً وَلَبَکَیتُم کَثِیراً )[متفق علیه ]

ترجمه :که تاسوپه هغه څه خبروای چي زه پرې خبریم نویقینابه تاسولږخندل اوډېر بـه موژړل .

کاش داسلام دې اصل تـه پاملرنـه شـوې وای اونشریه اداروله داسي نشر-یاتوڅخه ډډه کړې وای چي ټولنه له سمي لاري منحرفه وي .

ترنشرولوېې وړاندي ددې خبري احساس کولی چي بحیث مسلمان داڅه زه نشرکړم کـه نه ؛داسمه ده چي دوی دنشریاتوپه مټ خپلـه روزي لاس ته راوړي خوښه به داوي چي دخپل رزق دحلالوفکر وکړي.

## لیکوالي د وجود دفاعي سیستم قوي کوي

د تکزاس ایالت د رواپوهنې استاد پروفیسور جیمز پني بیکر د لیکلو په اړه یوه څېړنه کړې او پکې یې ویلي دي، داسې شواهد شته چې د پخوانیو ترخو او خوږو خاطراتو په اړه لیکل کولای شي انسان ته خوښي ورو ببښي.

پدې څېړنـه کې ټولنپوهـان، ډاکتـران، محصلین او ان زندانیان هـم پوښتل شوي دي.

لـه لیکلـو سره د انسـان د علاقې او پـه واسطه یې د انسـان د روان معلوموولو ته هغه وخت د پني بیکر پام وراوښت چې په یوه دولتي اداره کې به یې تورن مجرمین د لیکلو له لارې پېژندل او د هغوی ربښتیا او درواغ به یې پرې معلومول.

د لیکلو پر مهال د انسان زړه درزېږي او په ځانګړي ډول هغه وخت چې څوک بیـا درواغ لیکلي، نو اراوپوهـان یې حالت پـه ډېره ښه توګـه معلوموولی شي.

هغه د څېړنې پرمهال دا هم معلومه کړه چې د ښو او بدو خاطراتو په اړه لیکـل د انسـان پـه روان څـه ډول اغیـز پریباسـي؟

پروفیسـور پني بیکر پدې بـاور دی، چې لیکل نه یوازې د انسان پـه عواطفو پـورې محـدودېږي، بلکې د منفي او مثبتو پېښـو لیکل د انسان د وجود دفاعي سیستم قوي کوي، خو پدې شرط چې د دواړو برخو د خاطرو لیکل له تېر د عبرت اخستو لپاره وي نه د مایوسۍ لپاره.

همدا ډول په امریکا کې په ۱۹۹۹ ز کال کې په یوې بلې څېړنې کې ویل شوي و، چې لیکل د انسان روغتیا تـه ګټه رسوي او په ځانګړي ډول هغوی چې لـه ځینو پېښـو متضرره وي، نو لیکل یې ښه لاره ده چې د وجود اضطراب او پریشاني پرې راکمه کړي.

# پر ځان متکي شئ!

## عبد الله افغان

کله مو هم په دې اړه فکر کړی چې خپل د ژوند مصرف له کومه کوو، ماشومان و د مکتب دوره مو تېره کړه هره ورځ مو له مورکۍ څخه د کاغذ ،قلم او خوراکې توکو لپاره پیسی لاسته راوړې مور هم پرته له کوم دلیل څخه راته په جان او قربان د جب خرچه راکړې چې زویه سبق وایه!

د پوهنتون دوره شوه هلته هم له پیل نه تر پایه پلار راته مصرف استولی چې زویه تشویش مکړه او خپل سبقونه وایه! مونږ هم کله درس لوستی او کله مو له ملګرو سره بهر سات تیری کړی ده.

تر دې چې د پوهنتون دوره مو پای ته ورسیده او مونږ فارغان شو پلار راته ګوژدنه هم وکړه او د واده مراسم مو هم په خیر تیر شو اوس نو باید وظیفه وکړو تر څو د پلار ستړیا دمه شی او مور مو راباندی شکرګزاره شی، دا چې د کورنۍ دغه ارمان پوره کړو باید د وظیفی په اړه فکر وکړو دا زمونږ د ژوند تر ټولو ستر چلنچ ده چې بیا ورته اندیښنی کړو که مو د تعلیم او تحصیل له دروې پوره ګټه پورته کړی وی د دندی په پیدا کولو کې به راسره مرسته وکړی او که له دغه دوری مو استفاده نه وی کړی نو بیا وچې شونډی کله یوه بهانه او کله بله بهانه چې هله واسطه ده او هله رشوت دې مونږ ته څوک چانس نه راکوی حال دا چې مونږ خپل تیر نه را یادوو او خپل ځان نه ملامتوو پړه په نورو اچوو په دې نه پوهیږو چې مسول مونږ یو.

د یو په ځوان صفت کله مو هم د خپل مصرف په اړه فکر کړی؟ کله مو هم دا کوښښ کړی چې د خپل مصرف لپاره باید کار وکړو زیار وباسو تر څو په خپلو کورنیو باندې بوچ نه شو تر څنګ یې ورسره مرسته وکړو د ژوند په ځینو مواردو کې ورته لاس ورکړو زه په دې اړه مطمین یم چې زمونږ په ټولنه کې په ټوله ځوانان په دې فکر دي چې زمونږ مصرف باید مور او پلار راکړی دا د هغوی وجیبه ده خو بیا دیته فکر نکړو چې دغه وجیبه تر کومه؟ ایا د ژوند تر پایه؟ ایا دا ضروری ده چې مور او پلار دې مونږ ته ودونه هم وکړی او تر هغی ورسته بیا مونږ کار کړو او خپل کورنۍ ته یو څه پیسی راوړو؟

هر انسان باید په دې اړه جدی فکر وکړی تر څو خپل مصارف پخپله لاسته راوړی که چیری په دې اړه فکر او اقدام وکړو نو بیا به د خپلې کورنیو د ځوانانو تر منځ یوه نمونه یو د هری کورنۍ لپاره به مثال یو چې فلانکی خپل مصارف پخپله لاسته راوړی حتی

خپل مور او پلار يې هم ورته د احترام په سترګه ګوري ځکه د دوی د اړو بار نه دي يو ازاد انسان دي خپله د خپل خوښيو په اړه تصميم نيسی، ځينی معاصر فيلسوفان په دې نظر دی کوم انسانان چې ورکړه کوی هغوی په ټولو ګران او د احترام وړ وی او کوم انسان چې هر وخت له نورو غوښتنه کوي هغه د ټولو په وړاندی ټيټ او پريوتی وی.

د پوهنتون دوره د ځان جوړونې دوره ده کله چې يو ځوان پوهنتون ته داخل شی لومړی بايد په دې اړه فکر وکړی چې نور بايد په خپل ځان متکی شم نور د پلار له جيبه بس ده! ځينی به دا پوښتنه وکړی چې زمونږ په ټولنه کې چانس نشته چې کار وکړو مجبور يو چې د مور او پلار نه مرسته تر لاسه کړو. که چيری انسان د دې سوال ځواب ته رښتونی وی نو کولای شی چې ورته لاره پيدا کړی

او له لاندې طريقو نه استفاده وکړی:

د بيلګی په ډول زمونږ ننی نړې ډيره سره لنډه ده يو ځوان چې د پوهنتون دوری ته رسی هغه لږ تر لږه له کمپيوټر سره اشنا وي که نه وی نو د پوهنتون په ماحول کې کولای شی چې له خپل ملګری نه د کمپيوټر زده کړه وکړی د پيسو پيداکولو تر ټولو اسانه کار نن زمانه کې کمپوزنګ ده يعنی د کمپيوتر له لاری ليکل چې په دې ميدان کې ډير کمې شته د چاپ موسسی ځوانانو ته اړتيا لری چې ورسره د پسيو په مقابل کې کار وکړی. يو ځوان د پوهنتنو له ليلی هم کولای شی چې کمپوزنک وکړی او هم خپل درسونه منظم کنترول کړی او مقابل کې يوه مناسب عايد هم تر لاسه کړی.

ځينی به وايی چې مونږ نشو کولای چې هم د پوهنتون درسونه سرته ورسوو او هم کار وکړو دا منم چې په لومړيو ورځو کې به ستونزه وی خو د وخت په تيريدو سره دا ستونزه په هوس او خوند بدليږی زما ډير خواريکښ ملګری له دې لاری خپل عايد لاسته راوړی.

دوهمه اسانه لاره ډيزايننک ده دغه کار د فوتو شاب او کوررلډرا له لاری کيدای شی دواړه ډير ستونزمن پروګرامونه نه دی هر انسان کولای شی چې لنډه موده کې يی زده کړه وکړی او له دې لاری خپل مصارف پوره کړی.

دريمه لاره د ترجمی ده اکثر افغانان په فارسی ،پښتو او اردو ژبو باندی په بشپړ ډول تسلط لری او يو څه اندازه په عربی اوانګليسی ژبو باندی هم پوهيږی دا يوه ستره پانګه ده او بايد تری استفاده وشی له دې لاری دوی کولای شی چې مطالب خپلی ژبی ته وژباړی او نسبت لومړيو دوه طريقو ته له دی لاری ډير امتياز تر لاسه کوی.

دا لاری اسانه او تر څنګ يي د يو ځوان داخلی مهارتونه ژوندی کوی، د پوهنتون د دوری له پای وروسته بيا هم انسان ډير په دندی باندی متکی نه وی ځکه د عايد يوه لاره لری او له ډيرو ستونزو به خلاص وی.



احمد صدیق احمدی

# روایتی از جنگ امریکا:

# قاتل ۲۵۰ انسان بی گناه جایزه می گیرد!

انسان در تحیر می ماند، زمانی که کابوس وحشت را از مردمی می بیند و می شنود که خود را اهل قدرت مندترین و مدرن ترین کشور جهان بر می شمارند.

ابتدائی ماجرا، بر می گردد به سال ۲۰۱۳ که "کریس کایل" یک افسر-نیروی دریائی امریکا، ادعا کرده بود که وی در چهار دوره ی ماموریت اش در طی سال های ۲۰۰۳-۲۰۰۹ در جنگ عراق، به تنهائی تعداد ۲۵۰ مسلمان عراقی را تیرباران کرده است. در آن زمان وزارت دفاع امریکا به طور رسمی کشته شدن ۱۶۰ نفر را به دست این افسر- نظامی تائید کرده بود؛ اما بنابر گزارش روزنامه انگلیسی دیلی میل، "کریس کایل" شخصاً و به طور تک تک، تمام کشته هایش را ۲۵۰ نفر بر می شمارد.۱

بنابر ارزیابی نیروهای نظامی امریکا در آن زمان، عراقی ها "کریس کایل" را "شیطان الرُمادی" لقب داده بودند؛ زیرا وی نسبت به قتل عراقی ها دست باز داشت و آنها را بی باکانه قتل عام می کرد.

همچنان، گزارش روزنامه انگلیسی دیلی میل، می افزاید: کریس کایل، عراقی ها را تحت عنوان گروه های وحشی به قتل می رسانید و به خاطر این قتل عام، هیچ نوع ناراحتی را به خود راه نمی داد؛ برعکس ناراحتی وی زمانی ظاهر می گردید که برخی از همسنگرانش را در جنگ از دست می داد.

کریس کایل بدین باور بود که با قتل مسلمانان عراقی، می تواند نیروهای امریکائی را از خطر مرگ در امان داشته باشد. وی بعد از چهار دوره خدمت در اشغال عراق، در سال ۲۰۱۱ بعد از بازگشت، تمام خاطرات خود را در کتابی تحت عنوان "تک تیر انداز امریکائی" یا (American Sniper)نوشت، و به شرح ماجرای وحشتناک خود در عراق پرداخت. چنانچه وی در کتابش این گونه استدلال می کند: "وحشی و شیطان نفرت انگیز. این چیزی بود که ما در عراق با آن می جنگیدیم."۲

سرانجام این قاتل انسان های بی گناه، در سال ۲۰۱۳ در ایالت تگزاس امریکا توسط دوستش که از تکلیف روانی در جنگ رنج می برد، به قتل رسد.

با این همه، ماجرا خاتمه نمی یابد، یک سال بعد از مرگ این سرباز، در سال ۲۰۱٤ کمپنی امریکائی "برادران وارنر" فلمی را با اقتباس از کتاب خاطرات کریس کایل، به عنوان "قهرمان تک تیر

انـــداز امریکـــا"، صـــحنه ســـازی نمودنـد. داسـتان فلم بـه روایـت از کشـــتار کـــریس کایــل، در جنـــگ عــراق بـــا صـحنه سازی بردلی کوپر، مـــی پـــردازد کـــه مصارف مجموعی آن بـــالغ بـــر ۵۹ میلیـون دالـر بـود.



این فلم، ماه گذشته (۲۰۱۵.۰۱.۰۶) در امریکـا بـه عنـوان بهـترین فلـم سـال کاندید جایزه اسکار(Oscar)، جایزه ی که هر ساله توسط اکادمی علـــوم و هنرهـــای تصـــاویر متحرک (AMPAS)امریکا، به بهترین آثار سینما هداء می شود، گردید.

فلم "تک تیر انداز امریکائی" با صحنه سازی هـای نظامی از جنگ عراق، کریس کایل، قاتل مسلمانان عراقـی را بـه عنـوان یکـی از افسران قهرمـــان در دفـــاع از ارزش هـــای امریکـائی بـه نمـایش مـی گـذارد. برعلاوه، ایـن فلـم بـا صحنه سـازی هـای تخیلـی ایـن افسـر نظـامی امریکـا را بـه عنـوان شخصـت الگـو بـرای نسـل جـوان جهـت تشـویق هرچـه بیشـتر آنهـا بـه جنـگ علیـه مسلمانان معرفی می دارد، تا نسـل جـوان امریکـا بـا شـناخت دشـمن اصـــلی شـــان؛ یعنـــی اعـــراب و مســـلمانان، عضـــو نیـــروی هـــای نظامی امریکا شده و با این بهانـه در اشـغال کشـورهای جهـان سـهیم شوند.

داستان فلم در ابتدا با صدای أذان (اللّٰه اکـبر) شروع مـی شـود. صدای أذان در فلـم هـای امریکـائی به مثابه نواختن ناقوس جنگ است، به این معنـی که رسـانه هـای غـربی صدای أذان را طـوری بـه شـهروندان خود جلوه داده انـد، گویا اینکه وقتـی بیننده‌هـا صدای أذان را مـی شـنوند بایـد در انتظـار کشـتار و وحشـت باشـند. بـه تعقـب آن فلـم بـه آغـاز زندگـی کریس کایل می پردازد که چـه گونـــــه بعـــــد از شـــــناخت دشمن(مسـلمانان) وارد خـدمت در نیروی نظامی امریکا مـی گـردد. بعـد از آن تأثیر پـذیری کـریس کایـل را، از آمـوزه هـای پـدرش بـه نمـایش مـی گـذارد کـه وی مـردم جهـان را ایـن گونه دسته بندی می کند: « تمـام مـردم دنیـا بـه سـه دسـته تقسـیم شـده انـد: گوسـفندان، گـرگ هـای وحشـی و سـگ گلَـه. مـردم امریکـا گوسفندان بی آزار و ضعیفی اند که توســـــط گـــــرگ هـــــای وحشی(مسلمانان) مورد حملـه قـرار مـی گیرنـد و بایـد توسـط دولـت و نیروی های نظامی امریکـا کـه سـگ گلـه یـا هـمان نـاجی قهرمـان اسـت نجات داده شوند».۳

در اصـل، فلـم "تـک تیـر انـداز امریکائی" بـه انگیزه پیروز جلوه دادن امریکا در جنگ بازنده ی عـراق طـرح

شـده اسـت؛ ولـی در پهلـوی ایـن توجیـه، اعـراب و مسـلمانان را بـه عنوان دشمنان واقعی مردم امریکا به معرفی گرفته است؛ گویا امریکا می باید به چنین جنگی می پرداخت. بعـد از مشاهده ایـن فلـم، تمام بیننـده ها بـه خصوص امریکائیانی که آن را تماشا کرده اند، علیه اعراب و مسـلمانان دسـت بـه خشـونت های زیادی زده اند.

چنانچه بعد از اکران این فلم، کمیتـه عربـی-امریکـائی مقابلـه بـا تبعیض(ADC)، در نامـه ای عنوانی سازنده گان آن چنین نگاشته است: «بیشتر تهدیدهای خشونت آمیزی که در چند روز اخیر دیده ایم، نتیجه چهـره ای اسـت کـه از اعـراب و مسلمانان در ایـن فلـم بـه تصویر کشیده شـده اسـت. صدها پیام تهدیـد آمیـز بـا هـدف عـرب هـا و مسـلمانان امریکـائی از سـوی بیننـدگان فلـم در شـبکه هـای اجتماعی از جمله فیسبوک و تـوئیتر دریافـت شـده اسـت.» روزنامـه گاردین به نقل از یک پیام درشبکه اجتماعـی تـوئیتر مـی نویسـد:«ایـن فیلم، واقعاً عرب ها را، همان های اند که به تصویر کشیده است و ما باید آنها را نابود سازیم«.

ایـن روایـت بخـش کـوچکی از جنایات بزرگ امریکا در گوشـه ای از جهـان (عـراق) بـود کـه بنـابر اعتراف یکی از افسران نظامی امریکا برملا شده است. اما نکتـه جالب اینست که دولت امریکا و کمپنی هـای فلـم سازی آن، بـه جـای سـزا و سرپـوش گذاشـتن بـه ایـن وحشـیگری افسر نظامی شان، عملکرد او را به عنـوان الگو و سرمشـق ملت امریکا تبلیغ نمـوده و حتـی بـرای صحنه سـازی هــای آثـار بــه جـا مانـــده ی آن، بزرگترین جایزه را اهداء می نمایند!

با توجـه بـه ایـن و بنـابر تخمـین برخـی از نهادهـا، تمـام نیـروی هـای نظامی امریکا کـه در جنـگ ۹ سـاله عــراق سـهـم داشــتند تقریبـاً بـه ۱۵۰هـزار نفـر مـی رسـید. عـلاوه براین، تعداد ٤٦ هزار نیروی نظامی انگلیسـی نیـز در ایـن جنـگ حضـور فعـال داشـتند. در صـورتی کـه تمـام نیروهــای را کــه در ابتـدای اشـغال عــراق سـهیم بودنـد ۱۵۰هـزار تـن برشماریم و اوسط کشتار هـر یـک از نیـــروی نظــامی امریکـــائی و انگلیسی را بنابر قتل ۲۵۰ تـن عراقـی توسـط یـک شـخص، طـور اوسـط ۱۵۰ نفر تخمین کنیم، تمام کشـته شـده گـان عراقـی بـالغ بـر دونـیم میلیـون نفـر مـی رسـد. تخمینـی کـه شـاید تعـداد تلفـات بیشـتر از ایـن بوده باشد کـه ایـن رقـم هـیچ گـاهی در رسانه ها برای جهانیان این گونـه به نمایش گذاشته نشد؛ بل هرگـاه کــه سـخن از کشــتار عراقــی هــا توســـط نیروهـــای امریکـــائی و انگلیسی بـه میان مـی آید، معمـولاً تعداد مجموعی کشته شده گـان را یـک میلیـون نفرمـی شـمارند کـه ایـن خود یک رقم غیر واقعـی از آنچـه در عــراق صـورت گرفتــه را نشــان مـی دهد.

با این وصف، این تنها نظامیان امریکائی نیسـتند کـه بـه بهانـه جنـگ علیـه تروریـزم همـه روزه بـه اشـغال کشــورها و قتــل مــردم آن مــی پردازنـد؛ بلکـه در عقـب ایـن همـه، رسـانه‌هــا و کمپنــی هــای بــزرگ تولیدی حضور دارند کـه معرکـه هـای بازنــده امریکــا را در نمایشــاتی بـه عنوان برگ برنده و وحشـیگری هـای نظامیـان آدمکـش، آن را بـه عنـوان قهرمانــان جهــان بــه معرفــی مــی گیرند !



# سیاف د فنا او بقا په کشمکش کې

ډاکټر کمال م

د دلو میاشتي پر ۲٦مه د پخواني شوروي د ماتي په مناسبت په جوړه شوي غونډه کي پخواني جهادي مشر استاد سیاف یو ځل بیا د پخوا په مقایسه ډیره تونده لهجه استعمال کړه. استاد سیاف په یو وخت کي هم پر حکومت انتقادونه وکړل او هم پر طالبانو. مګر دا ځل یي په طالبانو خاص انتقاد ونکړ، بلکه مخه یي ټوله حکومت ته وه.

د استاد یوه خبره ډیره عجیبه وه او د ده له مخکینیو خبرو سره په ټکر کي هم وه چي د ملا محمد عمر اعلامیي په وزیر اکبر خان کي لیکل کیږي او خپریږي! استاد بي له دي چي خپل پخواني موقفونه په یاد کړي، دا خبره یي وکړه. مخکي به یې همیشه همدا خبره کوله چي طالبان د پردیو په لاس کي دي، له وطن نه بهر دي او د پردیو لپاره کار کوي. اوس چي وایي د طالبانو اعلامیي په وزیر اکبر خان مینه کي لیکل کیږي نو دا پر دي معنی ده چي اول خو طالبان داخل کي دي او په داخل کي بیا وزیر اکبر خان غوندي مخصوصه سیمه کي. او دویمه خبره دا ثابتوي چي طالبان دومره قوي دي چي حتی تر وزیر اکبر خان پوري تاثیر لري او خپل فعالیتونه تنظیموي. استاد ویل چي د طالبانو پلویان یي تر ږیري لاندي اوسیږي!

## سیاف او افراطي سیاسي ژوند

د دنیا په زندګي کي هر شی او هره مرحله یو آغاز او انجام لري. په ژوند کي هر څه آخر لري او په سیاست کي بیا د یوي مرحلي آخر ډیر ژر رارسیږي. استاد سیاف په خپل ژوند کي همیشه د افراط طرف نیولی دی. که مجاهد شوی نو بیطرفان یي «بیشرفان» ګڼل، که جهادي شوی بیا یي ظاهر شاه کافر باله، که حکومت کي داخل شوی، له حکومته بهر یي نور باغیان بلل، او که بلاخره د امریکا په مشرۍ په ۲۰۰۱ کي د یوه داسي نظام برخه شوی چي ټول ژوند یي له داسي یوه حکومت سره په ټکر کي تیر شوی نو بیا یي هم اعتدال سره جوړه نه ده شوي. بیا یي په همدي باطل کي خپل افراط ته دوام ورکړی.

د استاد سیاف په سیاسي ژوند کي د ۲۰۰۱ نه تر اوسه پوري مرحله داسي راغله چي د ده له علم او پخوانۍ مبارزي سره په تناقض کي وه. کله چي امریکایان راغلل نو فکر کیده چي استاد به په داسي یوه اشر کي نه شامليږي. خو استاد د خپل افراطي طبیعت په اساس په همدي تناقض کي یو داسي موقف ونیوه چي ټول یي هک پک کړل. استاد سیاف د سیاسي ژوند پدي مرحله کي صرف د یوه وزارت او دوه ولایتونو لپاره د اشغال او امریکایي سلطي لپاره د فتوی لوډسپیکر شو. داسي فتوی یي ورکړي چي د دیني علم ابتدایي طالبانو غوني یي هم زیږه کړل. په دومره اطمینان یي خپل حریفان تکفیر کړل چي ټول ګوته په غاښ شول.

**د استاد د فنا او بقا جګړه**

سیاف صاحب اوس د فنا او بقا په جګړه کې بوخت دی. که همدا ترخې خبرې ونکړي نور به د خبرونو له سرخطونو څخه هم ولویږي. اوس پدغو خبرو دومره کولای شي چې حداقل د مطبوعاتي فنا مخه ونیسي- مګر په سیاسي قدرت کې یې فنا نوره شروع شوې ښکاري.

هسې که د استاد سیاسي ژوند ته وګورو نو کله هم ونه توانید چې یو آبرومند سیاسي موقف ترلاسه کړي. په تیرو انتخاباتو کې کاندید شو خو فضیحت باره ناکامي یې ولیده. حتی چې هغه خپلو طرفدرانو یې هم اعتراف وکړ چې خلک له دوی څخه خپه دی او دوی نور نه غواړي. کله چې انتخاباتو کې مات شو نو بیا یې د اشرف غني او عبدالله عبدالله ترمنځ عبدالله انتخاب کړ. اګر چه عبدالله او د شمال ټلوالي څو ځلې استاد سیاف سره په سیاست کې نامردي کړې ده خو استاد «مجاهدین بیا آزمویي». شاید د استاد په نظر «آزموده را آزمودن صلاح» وي!

کله چې د ملي وحدت په نامه د عبدالله او غني په شراکت ګډ حکومت تشکیل شو، د کابینې تشکیل وښوده چې د استاد سیاف د سیاسي ژوند زوال شروع شو. حامد کرزي په کابینو کې استاد سیاف ته یو وزارت او یو یا دوه ولایتونه ورکول او سیاف به هم ورته خوشحاله و. خو اوسني حکومت کې نه اشرف غني او نه هم عبدالله استاد د یوه وزارت مستحق وباله. استاد په تیرو څوارلسو کلونو کې په اول ځل بې وزارته کیږي.

استاد سیاف اوس متوجه شو چې زوال یې شروع شو. اوس چې خپل زوال په خپلو سترګو ګوري نو کوشش کوي چې داسې موقف ونیسي چې د نظام مخالفین په ځان راټول کړي. د دلوې ۲۶مې په غونډه کې چې استاد سیاف، اسماعیل خان، بسم الله خان او نورو خپلې نهیلې اظهار کړې. په تیره غونډه کې هغو ښاغلو ډیر توند او ترخه تقریرونه وکړل چې د اشرف غني او عبدالله عبدالله په کابینه کې کوم خاص ځای نلري. دغو بې سرنوشته سیاستوالو ته اوس همداسې غونډې ښه مناسبتونه دي چې خپل دک زړونه او د قدرت هوسونه پکې تش کړي. کله چې پدې حکومت کې استاد سیاف ته یې هغه مخکینی وزارت په برخه ونه رسید، په آینده کې خو بیخي دا تمه نشي کولای چې څوک دې ورته وزارت ورکړي.

استاد سیاف له بلې خوا د طالبانو په مقابل کې هم داسې بې موده او بې بازاره موقفونه نیولي چې نن داسې موقف نه امریکایان لري او نه هم افغان حکومت. که یې دغه کار نه وای کړی کیدای شي د صلحې شورا ریاست یې په برخه شوی وی. استاد سیاف د خپل افراطي سیاست په وجې دغه موقف خپل کړی دی. د ځینو منابعو په حواله استاد ګمان کوي چې شاید په دغسې ترخو موقفونو او اظهاراتو سره امریکایانو ته قابل د منلو شي. استاد سیاف متاسفانه داسې قابل سیاسي مشاور هم نلري چې د سیاست له څپو سره سم ورته مشورې ورکړي.

اوس نو استاد سیاف دغسې- ترخه اظهارات په څو غونډو کې هم کوي او په نتیجه کې شاید د حکومت نه د بیرون پاتې شوو جنګسالارانو ډله سره راټوله شي او د اپوزیسیون د تمرین کولو کوششونه وکړي. دا کوششونه به دومره وکولای شي چې د استاد سیاف او د ډلې ټپلې یې سیاسي عطش کینوي، مګر دا چې په حکومت او سیاست کې ورته کومه خاصه جایګاه ورپه برخه کړي، دا نو له امکان او حقیقت څخه ډیره لرې ښکاري.

# دموکراسی ابتذال

نوشته: احمد فرید فرزاد

دموکراسی را همه می شناسیم و نیاز نیست تا در این مختصر در مورد آن حرفی بزنیم و نه هم بر آنم تا این پدیده را سبک و سنگین کنم، تمجید و یا مذمت کنم، بلکه آنچه مهم است تبعاتیست که توسط حامیان دموکراسی و نحوه ی عملکرد گسترش دهنده گان آن را در محک ادعاهای دهان پر کن آن بگذاریم.

طعم لذت بخش دموکراسی ابتدا کام اروپایی ها در غرب را شیرین نمود و سبب کامجویی شان گردید. امروزه در جهان ما دموکراسی به پدیده ی مقدسی تبدیل شده است که تمامی ملت ها می باید خواسته و یا نخواسته این شربت را تماماً سرکشیده و سرمست باده ی ناب دموکراسی شوند. همه ی ابعاد دموکراسی را بپذیرند و زنده گی خویش را با آن رنگ و بوی دهند، و گرنه اش که معلوم است! وای به حال آن ملت که در مقابل دموکراسی بیایستد، چون هم تروریست می شوند، هم خشونت طلب، هم عقب گرا می شود و هم متحجر و... بگذاریم!

در این بین خصوصاً کشورهای اسلامی که به باور بنیان گذاران دموکراسی در بند اسارت دین قرار دارند، نیاز به مدرنیته شدن و استقرار دموکراسی دارند. غربی ها - خصوصاً آمریکا - به عنوان ناجی ملت ها و پرچمداران دموکراسی در جهان، این وظیفه ی مهم را بدوش کشیدند تا با استفاده از مهره های غربگرا در کشورهای اسلامی با هر طریق ممکن - زور دموکراتیک و چه با دموکراسی زور مند - این پدیده را گسترش دهند. استثمار و استعمار، کودتاهای خونین و سقوط حکومت های مشروع، سرکوب حرکت های اسلامی، زندان، اعدام شخصیت ها و متفکرین مسلمان، لشگر کشی و اشغالگری، ترفندهای رسانه ای و ترویج فحشا و بی بندوباری از جمله اموریست که در کارنامه ی حاملان پرچم گسترش دموکراسی در جهان قرار دارد.

در کشور ما نیز، پروژه ی تغریب (غربی سازی) و تأمین دموکراسی آنهم با قرائت غربی - آمریکایی یکی از فربه اهدافی است که از زمان پاگشا شدن استعمار نوین در قالب ناتو توسط غربی ها و غربگرایان دنبال می شود و این روند زیر ذره بین تئوریسن های غرب گرا قرار دارد و برای هنجار شکنی پلان های میان مدت و دراز مدت دارند.

اما آنچه از عملکرد تند و شتاب زده ی غربگرایان داخلی در مورد «آزادی زنان» نمودار است، به خوبی نشان می دهند که آتش آنها برای استقرار نوع دموکراسی و زنده گی به سبک غرب، از غربی ها هم تند تر است و می خواهند هرچه زودتر و باز هم زودتر مسأله ی قید و بند زنان در جامعه ی سنتی افغانستان حل شود و زنان با بهره مندی از مزایای دموکراسی بتوانند با هر نوع پوشش و نحوه ی دلخواه در انظار عامه ظاهر شوند و...

راه اندازی حجم عظیمی از رسانه های دیداری و شنیداری و حمایت و اسپانسر بی دریغ برنامه های مبتذل، راه اندازی کمپاین های دفاع از حقوق زن، پروژه های هنگفت و پر مصرف، ایجاد خانه های امن، اختلاط زن و مرد در مراکز آموزشی و... از جمله ابزاری هستند که برای رسیدن به آرمان زن افغان به سبک زن غربی در جامعه ی اسلامی مان مورد استفاده جریان های تازه نفس با حمایت مالی ملیون دالری پرچمداران دموکراسی قرار می گیرد.

در این پروژه ها برای سنجش سطح هنجارشکنی هر از چند گاهی سوژه هایی را نیز دست و پا می کنند تا میزان واکنش جامعه را نسبت به دست آوردهای غربگرایانه ی

شـان بداننـد. اگـر وجـود موسسـاتی برای استخدام «مـدل» بـرای گشـت و گـذار در بازارهـا و بازاریـابی بـرای فـروش لبـاس هـایی کـه عمـدتاً بـی حجابی را نیز تشویق می کند، را دور از واقعیـت نـدانیم، خـوراک چربـی بـرای چنـین پـروژه هـای مبتـذل هستند.

چنـدی پـیش در محکـی (زنـی نیمـه برهنـه و بـی حجـاب در منظر عام) در بازار کابل عرضه شـد و بعـد از اعترض ها، نهاد های مدافع زن بـه دفـاع از وی پرداختـه و وی را بـیمار روانی تلقی نمودند و منقدین به ایـن زن را زیـر بـار انتقـاد گرفتـه و طبـق روش غربـی شـان هـزاران لقـب تحجرگرا و فکرهای کهنـه و... را نثار مدافعان حجاب و ارزش های اسلامی مان نمودند.

قضیه به همین جا ختم نشـد و نمی شود. غرب گرایان آتشین کـه هـر آن تخیل افغانستانی به سـبک غـرب، ذهن شان را به دنیای خیالی و اوهام می برد، از این که دختران نمی تواننـد آزادانه با پسران در پارک ها و بازارها گشت و گـذار نماینـد، دل شـان چـون نفس کسـی کـه در آسـمان بلنـد مـی رود، گرفتـه اسـت، بـاز دسـت بـه اقـدامی دیگـر زدنـد و بـه بهانـه ی بازپرسی یک پلیس از دختـر و پسـر، بحث آزار خیابانی را پیش کشـیده و شروع بـه انتقادهـا و شـکایت هـا از فضـای حـاکم در کشـور بـرای زنـان نموده و خواستار عدم دخالـت پلـیس و مزاحمت برای جوانان پسر و دختـر شده اند.

در اقدام اخیر نیز عده ای از به اصـطلاح مـدافعین حقـوق زن سـینه سپر نموده و با پوشیدن لباس آهنین مضحک که به هیچ نوع پوشیدن آن مناسب یـک زن مسلمان نیست، به رسم اعتراض به خیابان ها ریخته تا به زعـم خـود بـه «خیابـان آزاری» اعتراض نمایند. بگذریم از این که این اقدام چقدر نمایش نا معقول و نابخردانه است.

در این مورد چند نکته قابل تذکر است:

♣ از این دسته مدافعان نمادین حقوق زن باید پرسید که غربی شدن زن افغان چـه دردی از درد های زنان افغان را دوا می کند؟ اگر نظری به جوامع اسلامی - صرف نظـر از رسـم و رواج هـای نـامیمون قبیلـه ای - بیانـدازیم، ببینـیم کـه آیـا زنـان افغـان قبـل از دموکراسی صادر شده از غرب، وضعیت بهتری داشـتند و یـا اکنـون! کـدام مـورد تجـاوز، سربریدن، بینی بریدن، خشونت فامیلی، طلاق ها و فرار از منزل و... را قبلاً ثبـت داشـته ایم. اکنون با بلایی که از یُمن فرهنگ ابتذال دموکراتیک دامنگیر جامعـه ی مـا شـده ایـن موارد بیداد می کند و هر روز از خواهران مـا قربـانی مـی گیـرد. بگـذریم از پاشیده گـی خانواده ها و اختلافات روز افزون زن و شوهر!

♣آیا دور انـداختن چـادر، بـی حجابی و نمایش برجسـته گـی هـای بـدن در انظـار عمومی خیابان آزاری را کم می کند؟ مگر همـین اکنـون ایـن آمـار در کشـورهای اسـلامی بیشتر است و یا کشورهای غربی؟! زنان با حجاب بیشتر مورد خیابان آزاری قرار می گیرنـد و یا زنان بـی حجـاب!؟ نظـم اجتماعـی و ایجـاد محـدودیت بـین دو جـنس زن و مـرد در محیط های اجتماعی آسیب به زنان را کمتر مـی کنـد و یـا زنـان در محـیط هـای مختلـط بیشتر مورد سو استفاده ی افراد بی بندوبار قرار می گیرند؟

همین چندی پیش یک دختر آمریکایی بنام "شوشـانا رابـرتس" ، بـا ۱۰ سـاعت قـدم زدن با لباس های نیمه برهنه در نیویورک، و ثبت ۱۰۸ مورد تعـرض و مزاحمـت خیابـانی، از پدیدۀ آزار و تعرض زنان در خیابان های آمریکا پرده برداشت. جالب اسـت بدانیـد کـه عین اقدام مبتکرانه را یک مرکز اسلامی در نیویورک انجام داد و جریـان ۱۰ سـاعت پیـاده روی یک زن مسلمان با حجاب اسلامی را ثبت نمود که در آن هیچ موردی از آزار خیابـانی به مشاهده نرسیده است.

در آماری که یـک سـازمان فعـال حقـوق زن منتشـر نمـوده ٪۲۹ خیابـان آزاری را بـه پوشیدن لباس های نیمه برهنه و محرک برای شـهوت پرسـتان و ٪۷۳ را اقـدامات تحریـک آمیز از سوی خود زنان عنوان نموده است.

در یک بررسی دیگر از ۴۲ هزار زن در سرتاسر اتحادیۀ اروپایی نشان می دهد که از هر ده زن اروپایی یکی آن قربانی خشونت جنسی بـوده و نصـف قربانیـان مـورد تجـاوز قرار گرفته اند. بررسی حاکی است که بیش از ۱۰۰ میلیون زن در اروپا معروض بـه انـواع مختلف آزار و اذیت جنسـی بـوده انـد. بـر اسـاس ایـن گـزارش از هـر هفـت زن یکـی از برخورد با خشونت جدی جنسی حکایت کرده است.

حال، با توجه به آمار تکان دهنده ی فوق و انگیزه های این آزارها، آیا راه حـل ایـن معضل، اگر ترویج فرهنگ ابتذال، مدل زن غربی و برهنـه گـی در خیابـان باشـد کـه ایـن تجربه ی شکست خورده و ناکامی است که زنان غربی از آن رنج می برند!

♣ چرا اکنون زنان غربی با پشت سر گذاشتن دهه ها تجربه اختلاط و عدم محدودیت روابط اجتماعی با مردان، اکنون به سوی محدود سازی و تمایز جنسی روی می آورند؟ چرا اکثریت آمار گرایش به معنویت اسلام و حجاب را زنان غرب به خود اختصاص می دهند و از فرهنگ ابتذال غرب گریزان هستند!

عده ای متاسفانه می گویند اگر برهنه گی امری عادی در جامعه باشد، دیگر پسران به دختران آزاری نخواهند رسانید، حتی اگر بی حجاب باشند، چون برهنه گی امری عادی است و چشمان هوسناک را هم سیر می کند. این فرضیه کاملاً خلاف فطرت انسانی است و تجربه ی غرب آن را غیر واقعی ثابت ساخته است. زیرا چنانچه در آمار فوق گفته آمد، برهنه گی و اختلاط زن و مرد هیچگاه نتوانسته است این امر را عادی بسازد و دست اشخاص شرور و فرصت طلب را از سر زنان کوتاه بسازد. باید دانست که گرگ اگر سیر هم شود، باز روز دیگر گرسنه است و دنبال بره می گردد!

چرا هر راه حلی به ذهن غربگرایان می رسد، جز راه حل منطقی که اسلام آن را برای جوامع اسلامی تجویز نموده و قرن ها زنان در حفظ و امنیت کامل در جوامع اسلامی زیسته اند و این مشکلات را تجربه ننموده اند.

وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ (بخشی از آیه ۳۱ سورة نور)

و به زنان مؤمنه بگو : چشمان خود را (از نامحرمان) فرو گیرند (و چشم‌چراني نكنند) و عورت هاي خويشتن را (با پوشاندن و دوري از رابطه نامشروع) مصون دارند و زينت خويش را (همچون سر، سينه، بازو، ساق، گردن، خلخال، گردن‌بند، بازوبند) نمايان نسازند، مگر آن مقدار (از جمال خلقت، همچون چهره و پنجه دست ها) و آن چيزها (از زينت‌آلات، همچون لباس و انگشتري و سرمه و خضاب) كه (طبيعتاً) پيدا مي‌گردد، و چارقد و روسري هاي خود را بر يقه‌ها و گريبان هاي شان آويزان كنند (تا گردن و سينه و اندام هاي كه احتمالاً از لابلاي چاك پيراهن نمايان مي‌شود، در معرض ديد مردم قرار نگيرد).

بدیهی است که هر عقل منصفی راه حل را در عمق موضوع جستجو می کند. پایبندی جوانان چه دختر و پسر به ارزش های اسلامی، پوشش و عدم تبرج، رعایت اخلاق اسلامی و در نظر گرفتن حریم محرمیت و نامحرمیت از سوی جوانان راه حل عمیقی است که بسیاری از این مشکلات را حل می کند. جدیت مسوولین در برخورد با افراد هرزه و مزاحم اجتماع و کوتاه ساختن دستان و چشمان ناپاک از ناموس مردم و پایان دادن اختلاط در مراکز آموزش و پوهنتون ها، پایان دادن به پخش سریال ها و برنامه های مبتذل رادیویی و تلویزیونی از رسانه ها از جمله امور دیگری است که می باید بدان توجه شود. منظور سخن این است که هیچگاه نمی توان با پدیده ی خیابان آزاری از یک تعصب خاص، به یک بعد خاص توجه کرد، بلکه این امر جدیت هر سه گروه اجتماع فوق را می طلبد تا زنان و مردان با حفظ ارزش های دینی در آرامش و امنیت کامل زنده گی اجتماعی خویش را داشته باشند.

در اخیر باز روی سخنم با آنانی است با بلند کردن پرچم حقوق زن و به اصطلاح دفاع از زن، از آب گل آلود کشور ما با راه اندازی پروژه های رنگارنگ سعی دارند ماهی بگیرند. عالیجنابان این قدر برای تبدیل شدن جامعه ی افغانی به سبک غربی تلاش می کنید، آیا واقعاً دلسوزی تان برای زنان افغان مطرح است و یا در پشت این تلاش های مخلصانه، کدام منفعت دالری و تعصب بی مورد با ارزش ها و هنجار های جامعه، این قدر آتش تان را تند نموده است؟ متوجه این هشدار قرآنی باشید:

إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَن تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ (سورة نور/۱۹)

«بي‌گمان كساني كه دوست مي‌دارند گناهان بزرگي (همچون زنا) در ميان مؤمنان پخش گردد، ايشان در دنيا و آخرت، شكنجه و عذاب دردناكي دارند. الله مي‌داند (عواقب شوم و آثار مرگبار اشاعه فحشاء را) و شما نمي‌دانيد (ابعاد مختلف پخش گناهان و پلشتي ها را)».

بدانید که ملت ما ارزش والاتری از دموکراسی دارند! شما با این اعمال تان آن ذره ای از خوبی !که در بعضی جنبه های محدود دموکراسی وجود دارد، را نیز بد نام نموده اید. حال، این فرایند را با توجه به این فعالیت اغراض آلود، چه می توان نامید جز «دموکراسی ابتذال!».

# د یوکراین او اسلامي نړۍ د ستونزو لپاره

# متفاوتې حل لارې!

لوېدیځ د خپلمنځي شخړو د حل په موخه جلا او د سیاسي اسلام په وړاندې جلا او متضادې ستراتیژۍ تعقیبوي. خوله دې سره سره د دنیا پر وړاندې د عدالت او یووالي شعارونه ورکوي او یو شمېر غیر سیاسي مسلمانان دغه دوه مخي شعارونه رښتیني ګڼي او پرې باور کوي.

د المان دفاع وزیرې (اورسلا وون دي ریاندې) د مونیخ په پنځم کانفرانس کې اخطار ورکړ چې د روس پلوه یاغیانو پر وړاندې د یوکراین د پوځ سره پوځي مرسته به په دې هیواد کې تاوتریخوالی لا هم زیاد کړي او یې وپوښتل؛ آیا موږ ډاډمن یو چې یوکراین ته د وسلې په لېږد سره به د عامو خلکو ژوند ښه شي؟ هغې زیاته کړه چې د اروپا په نورو لویو ښارونو لکه لندن، برلین او فرانسه کې هم عام وګړي په یوکراین کې د پوځي حل لارې مخالف دي او د حل یوه سوله ییزه لارغواړي. پورتنۍ ویناوې په داسې حال کې رامنځ ته کیږي چې انګلا میرکل، د المان صدر اعظمه او فرانسو اولاند د فرانسې صدر اعظم د یو سوله ییزې حل لارې د موندنې په موخه په مسکو او کیف کې په خبرو اترو بوخت دي.

څو میاشتې د مخه د عراق او سوریې پر وړاندې جګړه ییزه ستراتیژي جوړه شوه. امریکا، د ناټو غړو هیوادنو او د منځني ختیځ هیوادو ټولو په دې هوکړه وکړه چې باید په دې سیمو کې په اوږدو سخته بمباري وشي او همداسې وشول. له میاشتو راهیسې په دې سیمو بمباري روانه ده او په زرګونو عامو وګړو ته په کې زیان رسیدلی. اوس په نایجیریا کې د بوکو حرام پر وړاندې یو ایتلاف د جوړیدو په حال کې دی چې په کې د لویدیځ په سلا او مشرۍ د سیمې هیوادونه به د یوه قوي زور او ځواک سره د بوکو حرام پر وړاندې جګړه پیل کړي او بمبارۍ به وشي.

پوښتنې دلته دا دي چې ولې د یوکراین برخلاف په اسلامي خاورو کې د سوله ییز حل په موخه منډې تړړې نه کیږي؟ ولې د عامو مسلمانو وګړو د ښیګڼې او ګټو په نظر کې نیولو سره جګړه ییزې ستراتیژۍ نه طرح کیږي؟ ولې د مسلمانانو بشري ناورین مخکې له ناورینه په نظر کې نه نیول کیږي؟ کله چې ناورین رامنځ ته شي، نو بیا د ملګرو ملتونو ادارې لکه د ملګرو ملتونو د ماشومانو صندوق، د مهاجرو اداره او د امریکا، برېتانیا، فرانسې، کاناډا او استرالیا تمویلونکي ادارې د ماشومانو او کډوالو د خراب وضعیت په اړه راپورونه خپروي او داسې ښيي چې ګواکې دا

وضعیت مسلمانانو په نورو مسلمانانو راوستی دی او اوس موږ غواړو چې د ځېلو شوو سره د مرستو په ذريعه دې ناورين ته د پای ټکی کیږدو او یا یې هم خورا راکښته کړو. په داسې حال کې چې د دې ناورين اصلي طرحه کونکي په خپله همدوی دي.

رسوالله ﷺ د دې حدیث په مطابق چې ټول کافران د مسلمانانو پروړاندې یو دي، دوی په حقیقت کې د مسلمانانو سره په زړونو کې کومه همدردي نه لري او موږ او موږ هم باید ورڅخه د همدردۍ تمه ونه کړو. دوی هیڅکله موږ ته د حل هغه لارچې د ځان لپاره یې غواړي نه خوښوي، بلکې هسې په پوچو وعدو او دروا غجنو شعارونو مو غلوي! د لویديځ د پورته دوه مخی ستراتیژۍ څخه – چې د یوکراین د خلکو لپاره څنګه حل غواړي او د مسلمانانو لپاره څنګه حل غواړي – موږ ته دا څرګنده شوه چې زموږ همدا کړکیچن حالت د کفارو په ګټه دی.



## د ۲۰۱۵ شتمن کسان

د شتمنو مجلې د شپاړسم ځل لپاره بېل ګېټس یو ځل بیا د نړۍ تر ټولو شتمن په ګوته کړی دی.
بېل ګېټس چې د مایکروسافټ څښتن دی یو ځل بیا د مکسېکو کاروباري کارلوس سلېم شا ته کړی دی.
د بېل ګېټس شتمني په تېر کال درې میلیارده ډالره پورته شوې ده. د فبرورۍ تر ۱۳ نېټې پورې یې شتمني ۹۷ میلیارده ډالره وه.
د شتمنو د مجلې په وینا په نړۍ کې د شتمنو کسانو شمیر ۱۸۲۶ تنو ته رسېږي. د مجلې په وینا په تېرو ۱۲ میاشتو کې د شتمنو میلیاردرانو شمېر ۱۸۱ تنه لوړ شوی دی. د شتمنو مجلې په وینا بېل ګېټز په تېرو ۲۱ کلونو کې ۱۶ ځله د نړۍ تر ټولو شتمن کس نومول شوی دی.
د امریکا یو مشهور پانګوال د ۷۲ میلیارد ډالرو په لرلو یې د شتمنو په لست کې دریم ځای خپل کړي دی.
د ۲۰۱۵ کال لپاره د شتمنو کسانو نوملړ:
۱ -بېل ګېټس ۷۹.۲ میلیارد ډالر (مایکروسافټ)
۲ -کرلوس سلېم هېلو ۷۷.۱ میلیارد ډالر (ټیلیفون او جوړونه. مکسیکو)
۳ -وارین بفېټ ۷۲.۷ میلیارد ډالر (نړیوال سرمایه اچوونکی)
۴ -امینېکو اورتیګا ۶۴.۵ میلیارد ډالر (زرا او فشن)
۵ -لري سن ۵۴.۳ میلیارد ډالر (اورکل او ټېکنالوژي)
۶ -چارلس کوچ ۴۲.۹ میلیارد ډالر ( انډستړلېسټ)
۷ -ډېوېډ کوچ ۴۲.۹ میلیارد ډالر (والمرټ د خرڅلاو)
۸ -کرستي والټن ۴۱.۷ میلیارد (کارخانه لرونکی)
۹ -جیم والټن ۴۰.۶ میلیارد ډالر (کارخانه لرونکی)
۱۰ -لیلېن بېټنکورټ ۴۰.۱ میلیارد ډالر
د شتمنو کسانو په لست کې لومړۍ ښځینه کرېستي والټن ده. دا په تېرو شپږو کلونو کې د پېنځه ځله د نړۍ د شتمنو په لست کې راغلې ده.
د فېس بوک مالک مارک زوکبرګ پېنځه ځایه لوړ شوی او اوس د ۳۳.۴ میلیارد ډالرو په لرلو پر ۱۶ ځای دی. دا لومړی ځل دی چې د نړۍ د ۲۰ شتمنو کسانو په لست کې یې نوم راځي.
اېون سپېګل د یو نیم میلیارد ډالرو په لرلو د نړۍ د ځوان شتمن کس په توګه وړاندې شوی.
د شلو شتمنو کسانو په لست کې یوازې ۱۵ یې د امریکا دی.
د شتمنو کسانو د مجلې په وینا دغه لست ۲۹۰ نوي شتمن کسان لري چې ۷۱ یې د چین دي. همدارنګه ۴۶ میلیاردان له ۴۰ کلونو کم عمر لري.
۱۳۸ کسان د شتمنو له دغه لست لوېدلي دي، چې یو یې د اورکراین ولسمشر دی.

## لکونه

# برادر

**سمیع الله مهاجر**

**عاقبت خاک شود حسن جمال من و تو**
**خوب و بد می گذرد وای به حال من و تو**

**قرعه امروز به نام من و فردا دگری است**
**می خورد تیر اجل بر پر و بال من و تو**

**مال دنیا نشود سد ره مرگ کسی**
**گیرم این کل جهان باشد از آن من و تو**

**هر مرد شتربان اویس قرنی نیست**
**هر شیشه ی گلرنگ عقیق یمنی نیست**

**هر سنگ و گلی گوهر نایاب نگردد**
**هر احمد و محمود رسول مدنی نیست**

**بر مرده دلان پند مده خویش می آزار**
**زیرا که ابوجهل مسلمان شدنی نیست**

**جایی که برادر به برادر نکند رحم**
**بیگانه برای تو برادر شدنی نیست**

# دهشگردي

**حافظ محمدقاسم ذهیب**

ږیره ، برېت ، پګړی، څادر دهشتګردي شوه
تګ په لار د پیغمبر دهشتګردي شوه

د قرآن او د حدیث خبري مه کړئ
دا ویناوي سر اسر دهشتګردي شوه

حق واعظ ته نور د وعظ موقع نشته
هر مسجد محراب ممبر دهشتګردي شوه

فرض جهاد څوک یادوی نشي ویرېږي
دا الفاظ او دا خبر دهشتګردي شوه

د اسلافو صحابه وو قیصې و لاړې
هغه فکر ها هنر دهشتګردي شوه

لوخ سرونه به ځوانان او پېغلي ګرځي
که پړونی کړي په سر دهشتګردي شوه

د صلیب نښان ارزښت لري ((زهیبه !))
لیک د الله اکبر دهشتګردي شوه

## لټون

عرفاني

ګرځمه ګل پسې اغزي لټوم
سپېره خزان دی پسرلي لټوم

دازادۍ لیلی ته هار جوړوم
دسندپه تل کې سپین غمي لټوم

چې په کتو یې ځما روح تازه شي
دطالب سترګې خماري لټوم

سپرابوم پرې تږې زړونه
جام مې په لاس کې دی ساقي لټوم

چې لږ پدلي وي پرکاڼوباندې
دعاشقانومات تندي لټوم

ور پسې ځمه دصحرا پرلوري
دخوږې مینې لېوني لټوم

ګرم دی بیا نن دغزاوو میدان
لراو بر توروته زلمي لټوم

ورځم پرې لیکم یو دمینې غزل
رانه ورک شوی عرفاني لټوم

## معصومې وینې

**رضوان الله فیضاني**

مُفتې نه دي رنګ به راوړي دشهید معصومې وینې
سم دتوروشرنګ به راوړي دشهید معصومې وینې

چې په وینوکې لت پت شوهغه ښکلی ګلالی ځوان
یوسپېڅلی جنګ به راوړي دشهید معصومې وینې

دغه وینې به سېلاب شي دظالم کوربه وررنګ کړي
سخت اومست غورځنګ به راوړي دشهید معصومې وینې

لوی توفان به شي هرڅاڅکی هرخونخواراوهرخون رېزته
خطرناکه زنګ به راوړي دشهید معصومې وینې

رعداوبرق به شي دښمن ته سرې سکروټې به پرې اوري
هیبتناکه کړنګ به راوړي دشهید معصومې وینې

چې له ښکلي نازولي سپین قران نه صدقه شوې
اسلامي پرهنګ به راوړي دشهید معصومې وینې

هره خوابه رنګینه کړي دښتې غرونه به ښکلا کړي
مشک عنبرلونګ به راوړي دشهید معصومې وینې

(فیضاني) همېش پرې ویاړه چې توی شوي په اسلام دي
حماسه اوننګ به راوړي دشهید معصومې وینې



## رښتیا

**رښتیا هغه اخلاقي خاصیت دي چې په دنیا کې پرې دانسان ټول کړه وړه تلل کیږي**
**همدا (رښتیا) ده چې انسان ته د نورو انسانانو په مینځ کې اعتماد او باور وربخښي**
**همدا (رښتیا) ده چې انسانان دګناهونو څخه ساتي**
**همدا (رښتیا) ده چې دانسان دمخ رڼا زیاته وي او د بدمخۍ،بې باورۍ،بې اعتمادۍ، او په ټولنه کې یې دشرم او حیا دله لاسه ورکولو څخه ساتي.** ــ سروری ــ

# تش په نوم مجاهدینو، امریکایان مو نور نه پیږي!

(زمری افغان)

په کابل کې راټول پخواني تش په نوم مجاهدین پوهیږي چې د امریکا تیکه پرې کمېدونکې ده، نو ځکه حیران دي چې څه وکړي. امریکا چې کله په ۲۰۰۱ کال کې پر افغانستان یرغل کاوه، نو په افغانستان کې یې تکیه پر پخوانیو یوشمیرتش په نوم مجاهدینو وه، خو بیا یې وروسته په واک کې یوه برخه له غرب څخه راوستلي کسان هم ور ګډل کړل. دواړو لورو له امریکا سره په همغږۍ دیارلس کاله ددې ولس وینې وڅښې. دوی له امریکایانو سره په یوه ناوړه اېتلاف کې را غونډ شوي وو. دغو تش په نوم مجاهدینو د رښتینو مجاهدینو او مسلمانانو پر مال، ناموس او عزت له هېڅ ډول تیري څخه ډډه ونه کړه. دوی امریکایي ځواکونه د رښتینو مجاهدینو پر کورونو ور وخیژول. هغوی یې ووژل، ماشومان او تور سرې یې په سپیو وداړلې او ویره او وحشت یې خپور کړ. له دوی او د دوی له غربي ترهګرو څخه هر ډول جنایتونه وشول چې د نیم افغانستان کلی کلی او کور کور د دوی د وحشتونو شاهدان دي.

خو اوس چې د امریکا د حضور ډول بدلیږي، امریکا تر مجاهدینو ډېر په پخوانیو کمونستانو تکیه کوي. له همدې امله هغوی په واک کې دي او داسې اټکل دی چې په شدت سره به د افغانستان مهم پوستونه د غربیانو په مرسته د کمونستانو لاسته ولویږي. له دې امله هم نه چې غربیان کمونستان واک ته راولي، له دې امله چې تش په نوم مجاهدین له واک لرې کیږي او امریکا پر دوی نور حساب نه کوي، نو ځکه دا تش په نوم مجاهدین بیا د جهاد او مجاهدینو چیغې وهي. بیا ځان ولس ته نږدې ښیي او بیا هڅه کوي چې پر غربیانو ځان په ګرانه بیه وپلوري.

هغوی چې پرون یې د سې ای اې پر پیسو لوبې کولې، تر ننه یې د افغان ولس پر رګونو خوله اېښې او ددې ولس وینې څېښې. دوی له هغو او دغو استخباراتو سره د معاملې پر بنسټ د همدې ولس پر وینو پایي. خو لا هم د جهاد، مجاهد او مسلمان خبرې کوي. پرون دوی بیا را ټول شوي وو، بیا یې د قراني ایتونو د تحریف هڅه وکړه، بیا یې امریکا ته ځان وښوده چې دوی لا هم ځواک لري او امریکا پرې حساب کولی شي.

خو دوی هېروي چې نور یې وخت پوره کېدونکی دی. د دوی ماموریت همدومره و. اوس به نو امریکایان پرې لاس پاکوي. د ټولو ستونزو او بدبختیو لامل به یې ګڼي او یوازې به یې پرېږدي. دوی نور له کاره لوېدلي، ځکه په ولس کې نفوذ نه لري او خلک ترې کرکه کوي. له همدې امله دوی د امریکا لپاره هم مهم نه دي او نور یې د پېرلو هڅه نه کوي.

دوی به نورې داسې چیغې هم وکړي، ځکه دوی له واکه شړل شوي او یو ستر ذلت یې په مخ کې دی. دوی به ډېر ژر له ستر ذلت سره مخ شي او دوی دې نه هېروي چې د اخرت ستر ذلت یې هم انتظار کوي.

# جالبه کيسه ده

ځوارلس سوه کاله وروسته هم د حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه په نامه په مدينه منوره کي مځکي شته چي د الله جل جلاله لپاره وقف دي او د سعودي عربستان په بانکونو د عثمان بن عفان په نوم اکاونټ او حساب هم شته دی.

قصه داسي وه چي د مسلمانانو له هجرت وروسته په مدينه منوره کي د ټولو لويو څاګانو اوبه مخ پر لږېدو شوې خو يو ډېره لويه څاه چي د بئر رومه په نوم مشهوره وه د اوبو د لږوالي له بحرانه خوندي وه خو دا څاه د يوه يهودي ملکيت وو چي د څاه هرغوړپ او به يي په بيه پلورلي حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه ورغی ترڅو له يهودي څخه دا څاه وپيري خو يهودي د څاه خرڅولو ته تيار نشو. بيا اميرالمؤمنين حضرت عثمان رضی الله عنه ورته د نيمي څاه د پيرلو وړانديز وکړ چي يهودي قانع شو او نيم څاه يي ورباندې وپلوري، په دې ترتيب چي د څاه اوبه يوه ورځ د يهودي وي او بله ورځ به د حضرت عثمان رضي الله عنه وي.

يهودي ډېر خوښ وو چي حضرت عثمان رضی الله عنه غوندي تکړه تاجر ورسره شريک شو اوس به يې اوبه نور هم ښه قيمت پيدا کړي خو په دريمه ورځ ورته معلومه شوه چي دده ګيراکان ټول په هغه ورځ اوبو وړلو ته راځي چي د څاه نوبت د حضرت عثمان رضی الله عنه وي ځکه چي هغه خپلي اوبه د الله جل جلاله لپاره وقف کړي وې چي خلګو په وړيا توګه وړلې، يهودي چي پوه شو نو له حضرت عثمان رضی الله عنه نه يي وغوښتل ترڅو مکمله څاه وپيري او د ۲۰۰۰۰ زره درهمو په مقابل کي حضرت عثمان رضي الله عنه ته وسپارله او هغه هم ټولي اوبه د الله عزوجل لپاره وقف کړې.

ويل کيږي چي يو وخت کوم صحابي وغوښتل چي دا څاه د هغه په دوه برابره قيمت له حضرت عثمان رضی الله عنه نه وپيري خو اميرالمؤمنين حضرت عثمان رضی الله عنه ورته وويل چي نه تردې ګرانه يي له ما څخه غواړي.

صحابي ورته وويل: دري برابره قيمت واخله، ويل نه تر دې هم ګرانه! څلور، پنځه ... تر نهه برابره قيمت ورکولو پوري تياروو خو حضرت عثمان رضی الله عنه بيا هم ونه منله نو هغه صحابي رضي الله عنه ورته وويل چي تر دغه قيمت پورته به يي هيڅ څوک هم درنه وانخلي. حضرت عثمان رضي الله عنه ورته وفرمايل: ماته مي رب د نيکۍ لس برابره بدله راکوي ايا دا لږ څه دي؟

ددغه څاه شا وخواته کرار کرار باغونه کينول شول په سلګونو ونې يې اوبه کولې او د حاصلاتو روپۍ يې پر يتيمانو او مسکينانو ويشل کېدې. هر حکومت ددغه وقف خاص خيال وساتی او عثماني دولت دغه وقف ته نور هم انکشاف ورکړ په دغو روپيو نور جايدادونه او باغونه هم واخيستل او د هغه راپه دې خوا د سعودي حکومت هم دغه وقف ته لا

زیاته پراختیا ورکړه. ویل کیږي تر اوسه تر ۱۵۰۰ سوه زیاتي د خرما وني لري او د حاصلاتو نیمایي یې پر مسکینانو او یتیمانو ویشي او نوري نیمایي یې په سعودي بانک کې جمع کوي تر څو په نورو خیریه کارونو کې ورنه ګټه واخلي.

د امیرالمؤمنین حضرت عثمان رضی الله عنه له ق ف شویو مالونو څخه د زکات او صدقاتو له ورکولو سره سره په بانک کې دومره شتمني موجوده ده چې څه موده وړاندې یې د مدینې منورې په مرکزي او سنټرال ایریا کې د یوه لوی بلډینګ لپاره ځمکه وپیرله او یو لوی بلډینګ یې ورباندې جوړ کړ چې تقریبا د کاله ۵۰ میلیونه ریاله عائد لري او عائد به پر بیوزله او یتیمانو ویشل کیږي.

د یادونې وړ ده چې په سعودي بانک کې د حضرت عثمان رضی الله عنه په نوم ډیره زیاته شتمني پرته ده او د تعجب ځای خو داده چې دا ټوټه ځمکه او ودانۍ په ښاروالۍ کې رسماً د عثمان رضی الله عنه په نوم ثبت ده.

سبحان الله! له الله جل جلاله سره تجارت څومره تلپاتې او همیشنۍ ګټې لري! پوره څوارلس سوه کاله دغه تجارت دوام وکړ او لا جاري ده. ځکه خو رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي وو چې: د هر نبي لپار په جنت کي یو خاص ملګری وي او زما د جنت ملګري حضرت عثمان رضي الله عنه دی.

## کندهاریان: پولیسو په غلاوو اوتښتونو پیل کړی

دکندهار ولایت یو شمیر اوسیدونکي شکایت کوي چې په دې وروستو وختونو کې د کورونو، موټر سایکلانو او سړي تښتوني غلاوې ډېرې سوې دي.

دوی خبریال ډاټ کام ته وویل چې د شپې له خوا غله کورونو ته اوړي، قیمتي توکي له ځانونو سره وړي او وروسته یې په بازارونو کې خرڅوي

دکندهار دغه اوسیدونکي په پولیسو تور پوری کوي، چې په ډېرو غلاؤ کې لاس لري، ځکه چې ډېر وختونه غلاوې امنیتي پوستو ته نژدې کیږي.

د کندهار ښاریانو پر دولت هم تور پوري کړی چې پولیسو ته پر وخت سره معاش نه ورکوي، نو ځکه په غیر قانوني کړنو لاس پوري کوي.

کندهاریان له دولت څخه غواړي چې دغلاؤ مخه ونیسي او پولیسو ته پر وخت معاشات وکړي، ترڅو د یوې خوا به پولیس د غیر قانوني کړنو څخه راګرځېدلي وي او د بلې خوا به ښاریان په ډاډه زړه سره په ښار کې د امن په فضا کې ژوند وکړي.

په عیني حال کې پولیس هم شکایت کوي، چې پر وخت سره معاشات نه ورکول کېږي، نو دوی مجبوره دي چې نور ددې دندې څخه لاس پر سر سي.

د کندهار یو شمیر پولیسو چې پر ګزمه بوخت ول وویل دا درې میاشتې کېږي چې معاشات نه دي ورکول سوي.

دوی زیاتوي چې عیال په پسي دی او هغوی ډوډۍ ځني غواړي، که چیري دوی ته پر وخت سره معاش ورنه کول سي، نو مجبوره دي، چې نور له دې دندې لاس واخلي..

عام وګړي په داسي مهال کي له امنیتي چارواکو څخه د غلاوو د مخنیوي غوښتنه کوي، چې په دغه وروستیو څو میاشتو کې کاروبار په ټپه دریدلی او ډېری ځوانان د ښار په چوکونو کې په سوچونو او فکرونو کې ډوب ولاړ او ددې انتظار کوي، چې یو ښاري یې دمزودري لپاره بوځي.



# فرار ۳۰ هزار تن از صفوف نیروهای امنیتی

اداره‌ی ارزیابی استخبارات ملی (NIE) که توسط ۱۶ اداره‌ی استخبارات ملی ایالات متحده برای گزارش‌دهی به رییس جمهور ساخته شده است، سال گذشته پیش‌بینی کرده بود که اداره کابل پیش از ۲۰۱۶ سقوط خواهد کرد. اما ، روند آن خیلی سریع به پیش می‌رود و پیش از آن زمان اتفاق خواهد افتاد. هفته‌ی گذشته، اداره‌ی بازرسی ویژه‌ی آمریکا برای بازسازی افغانستان، سیگار، اعلام کرد که جنرال ارتش ایالات متحده، جان کمپبل، فرمانده تمام نیروهای بین‌المللی در افغانستان، اکثر گزارش‌های این اداره در رابطه به مصارف مالیات‌دهندگان امریکایی در این کشور اسلامی در حال فروریزی را شامل اسناد طبقه‌بندی‌شده کرده است. بازرس عمومی، جان سوپکو و مطبوعات امریکایی فرمانده نظامیان امریکایی را در تویتر و در تلویزیون شرم‌سار ساختند و او را مجبور کردند که گزارش‌ها را برای بررسی مالیات‌دهندگان در اختیارشان قرار دهد.

عقب‌نشینی جنرال کمپبل از موضعش، تمام ماجرا نیست.

ماجرای اصلی در عقب تصمیم شکست‌خورده‌ی پنتاگون در باره‌ی طبقه‌بندی اسناد مرتبط با نیروهای امنیتی افغانستان، کاهش نیروهای امنیتی افغانستان است؛ درسال مالی گذشته، ۳۰ هزار سرباز اردوی ملی گریخته‌اند. این رقم در گزارش وزارت دفاع ایالات متحده در ماه اکتوبر نشر شد. در این گزارش آمده است: «تشکیل اردوی ملی افغانستان به ۱۶۵ (خیلی پایین‌تر از ۱۹۵ هزار که تعداد مورد هدف بود) هزار تن می‌رسد که این رقم شامل تقریبا ۶۰۰۰ نیروی هوایی نیز می‌شود. میزان فرار در میان اردوی ملی هنوز چالش جدی‌ای را در برابر توسعه و پیشرفت اردوی ملی افغانستان قرار داده است«.

نگرانی اصلی ایالات متحده و متحدانش در رابطه به نیروهای امنیتی افغانستان، هم‌چنان، «کمبود سرمایه و ظرفیت انسانی در وزارت دفاع است.» به عبارت دیگر، مشکل بزرگی در استخدام و حفظ آنان در صفوف اردوی ملی وجود دارد. این مسئله به این دلیل مشکل‌ساز و بحث‌برانگیز است که وقتی مردم افغانستان خودشان از جنگ با طالبان برای وطن‌شان روی می‌گردانند، پس چرا مالیات‌دهندگان امریکایی به مصرف پول و خون‌شان برای آنان ادامه دهند؟

مشکل حل ناشده‌ی دیگر، فساد در درون حکومت کابل است. این کشور قادر نیست که میان مصرف و درآمدش تعادل ایجاد کند و اصرار دارد که ایالات متحده کسر ــ بودجه‌ی عادی آن را نیز بپردازد که برای مالیات‌دهندگان امریکایی ۵۰۰ ملیون دالر دیگر اضافه

خواهد شد. و این پول به مردمی پرداخته خواهد شد که تولید ناخالص داخلی آن ٤٥ میلیارد دالر است.

گزارش اخیر مسئولیت امریکا را نیز روشن می‌سازد، «ایالات متحده می‌خواهد که حضور نظامی‌اش را با تقریبا ۹۸۰۰ تن در افغانستان حفظ کند و آنان دو مأموریت جداگانه اما مرتبط با هم را به پیش خواهند برد.

جنرال فرانسه‌ای، جوزف اندرسن، در ماه گذشته با ابراز تأسف گفت که نیروهای امنیتی افغانستان «به دلیل گریز و افزایش تلفات، برای حفظ تعداد سربازان‌شان با مشکل مواجه اند. تا ماه اکتوبر نزدیک به ۲۰ درصد منصب‌ها در اردوی ملی افغانستان خالی بودند. استخدام و پس از آن فرار، با هم سازگار واقع نمی‌شوند و تلفات را نیز فراموش نکنید.» این جنرال که فرماندهی مشترک نیروهای آیساف را به عهده دارد، گفت: «از آغاز سال تا کنون نزدیک به ۵۰۰۰ تن از افراد پولیس و اردوی ملی افغانستان کشته شده‌اند.» این جنرال فرانسه‌ای در ادامه گفت که نیروهای امنیتی افغانستان، «بی‌ظرفیت و بی‌مهارت» هستند و توانایی اولیه برای حفظ و مراقبت تجهیزاتی را که ایالات متحده و متحدان آن فراهم کرده‌اند، ندارند.

سیاست‌مداران امریکایی واقعیت‌هایی را که در گزارش اداره‌ی ارزیابی استخبارات ملی بازتاب یافته است، نادیده می‌گیرند. این گزارش‌ها نتیجه‌گیری می‌کنند که افغانستان هیچ‌گاهی در منطقه نمی‌تواند روی پای خودش بایستد و نهادهای امنیتی آن پایدار شوند. گروه‌های جهادی از این وضعیت به خوبی آگاه اند. سیاست‌مداران امریکایی به شکل احمقانه‌ای، بر پیش راندن ماشین جنگ ایالات متحده تأکید دارند و تلاش می‌کنند که مالیات‌دهندگان را به این باور برسانند که ماجراجویی آنان در خاور میانه، یک سیاست پویا و موفق است. اما واقعیت‌های عینی این کشورها نشان‌دهنده‌ی شکست هدف آنان اند. برندگان این وضعیت اما سیاست‌مداران فاسدی اند که با پول مالیات‌دهندگان امریکایی، حساب‌های بانکی‌شان را پر می‌کنند.

گزارش اداره‌ی ارزیابی استخبارات ملی اعتراف می‌کند که حتا بعد از امضای موافقت‌نامه‌ی دوجانبه‌ی امنیتی و حتا اگر ایالات متحده سالانه ۸ میلیارد دالر به این کشور کمک کند، احتمال این‌که طالبان کنترول افغانستان را به دست گیرند، زیاد است.

گزارش این اداره که نظرات ١٦ اداره‌ی استخباراتی در آن انعکاس یافته، پیش‌بینی می‌کند که بعد از کاهش سربازان امریکایی در افغانستان، نفوذ طالبان بیش‌تر خواهد شد. حتا بعد از امضای موافقت‌نامه‌ی دوجانبه‌ی امنیتی، ناامنی در افغانستان افزایش یافت.

در کنار گزارش این اداره‌ی استخباراتی، هزارها سند افشاشده توسط ویکی‌لیکس نشان می‌دهند که ایالات متحده از فساد بی‌حد و مرز و احتمال بازگشت افغانستان به حکومت قبیله‌ای آگاه بوده است.

اسناد ویکی‌لیکس نشان می‌دهند که از سفارت امریکا نامه‌هایی تبادله شده‌اند که در آن‌ها بر ناکامی افغانستان در تأسیس یک دولت مرکزی کارامد تأکید شده است. در نتیجه‌ی بی‌ظرفیتی مداوم، میلیاردها دالر امریکایی در این کشور گم شده است. در این نامه‌ها گفته شده است که با خروج نیروهای ناتو، هرج و مرج آغاز خواهد شد،

ناظران بر این باور اند، این نوع گزارش‌ها معمولا پیش از تصمیم گرفتن برای آوردن تغییرات عمده در پالیسی نشر- می‌شوند. ( ۸ صبح)

# د حضرت محمد صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

# دامت فضائل

( شيخ الحديث اسحاقزى )

معلومه خبره ده چې الله رب العـزت ډول ډول مخلوقات پيدا کړی او دهغـوي له جملـی څخه يـو هـم انسانان دې، پـه انسانانو کې يوه برخه مسلم او مؤمن او بله ډلـه لـه اسلامه څخـه وتلـی ډلـه ده، پـه مسلمانانوکې هم الله ﷻ يوې برخې ته پـه بلې ډلی فضيلت ورکړيـدي، بيـا پـه ټولـو امتونـو کـې الله رب العـزت پـر امـت دمحمدرسـول الله ﷺ ډيـر زيـات حسـان کړي دي، له نصوصو څخه جوته او معلومه ده چه الله ﷻ په خپل وخت کې دموسې عليـه السلام پـر امت ( بنـی اسرائيلـو) باندې هم ډير زيات احسان کړيوو.

نو که سړی الهـی کـلام ( قـرآن تـه ) وگورئ او متوجه شې، نو دهر امت دنيکـو او بدو صفتونو پوره وضاحت کړ يدي. پـه تـورات شريـف کـې چـه لمړنـی اسمانی کتاب دی دمحمدﷺ دامت ډيـر فضائل بيان شوي دي چه ان شاؤ الله مـوږ بـه ئـی په لاندې ډول بيان کړو.

دسورة اعراف پـه (۱۴۵) نمـبر آيـات کې الله رب العزت د تـورات هغـه عبـارت وموسی عليه السلام ته ئی حکم کړيوو پـه قرآن عظيم الشان کې ئی بيانوی.

ترجمـه: الله فرمـائی چـه مـونږ د تورات په لوحوکې وموسی عليه السلام تـه دهر شې د کيفيت په باره کې او دخلکو د پند لپاره هر څه په واضح ډول سره ليکلـی وه، او حکم مو کړی وو، چه تاسې پر هغـه عقيده او باور ولري او عمل پـر وکـړي او خپل قوم ( بنی اسرائيل) تـه دعمـل کولـو امر وکړي. او ژر ده چـه زه بـه دهغـه چا ځای دراتلونکي اوسيدلو دروښيم. ( څوک چه د تورات حکونه نه منی) چه هغه ځای دوزخ دی.

( ابوشيخ)رحمه الله څخه روايت دی چه الله رب العزت وموسی عليه اسلام تـه وويل. چه ای موسـی تـه پـوهيږی چـه مـا ولی ته په نورو خلکو کی غوره کـړی ئـې؟ نو موسی عليه السلام عرض وکړو چه نه يا الله . نو الله رب لعـزت ورتـه وفرمائـل چـه هيڅ چا زما په حضور کې دومره تواضع او عاجزی نه ده کړی لکه تا .

بل روايت له عبدبن حميـد هغـه لـه وردان بن خالد څخه نقل قـول کـوی، چـه الله ﷻ آدم عليـه السـلام ، جبرائيـل عليـه السلام ، قلم دليکلو ، عرش العظيم ، لـوح المحفـوظ او تـورات شريـف پخپـل لاس پيداکړی دی.

وهب بن مبڼه د پورته آيـات مبـارک په باره کې داسې ليکی، چه الله رب العزت وموسی عليه السلام تـه وفرمائـل چـه زمـا عبادت کوه، او زمـا سره پـه عبـادت کـی هـيڅ څـوک مـه شريکـوه (دمځکـی او آسمانونو د اوسيدونکو ته) ، نو که چا زمـا سره مخلقو شريک کړو نو زه غوسه کيږم، نو کله چه زه په غوسه شوم نو لعنت کـوم ( مقصـد دخپـل رحمـت څخـه ئـی ليـری کوم). او چا چه زما اطاعت وکاوه ، له هغه نه راضی کيږم، او چه له چـا څخـه راضـی شوم، نو پر هغه باندې برکت ايږدم، او بل زما په نامه د دروغو قسم مه خـوره، ځکـه هغه څوک چه زما په نامه د دروغـو قسم خوری نو هغه ته دگناه عفو نه کوم. او پـه خپل ژوند کی دمور او پلار عزت کوه، پـه يقين سره هر چا چه دوالدينو عزت وکـاوه نـو عمـر ئـی اوږديـږی او داسې اولاد بـه ورکړم چه بيا به له ده سره نيکی کـوی، او چا چه خپل والدين اذيت کـړل عمـر ئـی لنډوم ، او داسې اولاد ورکـوم چـه دی بـه اذيت کوی، غلا او زنا به کـوی، او د الله او

دهغه درسول ﷺ او خپل دشمن ته شامه کوه ( په جهاد کې) اود گاونډي دمال او عزت ساتنه کوه.

له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی، لکه چه موسی علیه السلام له الله سره مناجات کاوه نو هغه فضائل چه الله ﷻ ، ومحمدﷺ اودهغه امت ته بخښلی دي، او په تورات کې دهغوې ذکر شويدي، نوموسی علیه السلام والله ﷻ ته عرض وکاوه چه دا کوم نبی او دهغه امت دی؟ چه تا دقیامت په ورځ اول او آخر گرزولی دی. نو الله ورته وفرمائل دا امت دمحمد ﷺ چه عربی التهامی له اولادی د اسمعیل علیه السلام څخه او د هغه امت او په محشر کې ډیر عزتمند او رسالت می پرده ختم کړیدي ، نو موسی علیه السلام الله ﷻ ه عرض وکاوه، چه یاربی زه خو دی غوره بنده او په خپل خبرو سره خاص کړی یم، نو اللهﷻ ورته وفرمائل ، ته زما غوره بنده ئی او دی می حبیب دی، دی به پاڅوم په ورځ د قیامت، پر خپل هغه لوی حوض چه واک او اختیار به ئی له ده سره وی، او زیاد راتلونکی به ولري، نو موسی علیه السلام ، الله ﷻ ته عرض وکړ، چه یااللهﷻ او شرف خودی ټول ده له ورکړه، نو اللهﷻ ورته وفرمائل، ځکه چه دوی پر ما او زما پر ټولو رسولانو ایمان لری او زما پر حکمونو په غیب سره یقین کوی، موسی علیه السلام عرض وکی چه دا د دوی صفت دی؟ نو اللهﷻ ورته وفرمائل چه هو، موسی علیه السلام عرض وکاوه ، چه یاالله ! تا دوی لره دجمعی مبارکه ورځ اودهغی فضائل بخښلی دي او که زما امت ته؟ نو اللهﷻ ورته وفرمائل چه دوی لره ، بدون ستا دامت څخه، موسی علیه السلام الله ته عرض وکاوه، یا الله ما په تورات کی ولیدل، صفتونه دهغه امت چه دهغوی پښی به دقیامت په ورځ ځلیږی(رڼا به کوی) دا څوک دي؟ نو اللهﷻ ورته وفرمائل چه دا امت د محمد رسول اللهﷺ دی، چه د اودسونو له وجهی به ئی پښی رڼا کوی.

موسی علیه السلام الله ته عرض وکاوه ؟ چه یاالله ما په تورات کې ولوستل د داسې امت نیک صفتونه چه پر پل صراط به لکه برق تیریږی، او یا لکه دباد (سیلۍ) دا کوم امت دی؟ الله ﷻ ورته وفرمائل چه دا امت دمحمدﷺ دی، موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکۍ؟ چه ما په تورات کې دیو امت نیک صفت ولیده، چه هغوي به په شپه او ورځ کې پنځه وخته فرض لمونځونه کوي دا کوم امت دی؟ نو اللهﷻ ورته وفرمائل چه دا امت دمحمدﷺ دی، موسی علیه اسلام الله ﷻ ته عرض وکړ؟ چه یا الله ﷻ ما په تورات کې دیو امت نیک صسفت ولیده ، چه لنگونه او پایڅی به ئی د بیړیو ( بجلکو څخه اوچتی وی، دا کوم امت دی؟ نو اللهﷻ ورته وفرمائل چه دا امت دمحمدﷺ دی، موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکاوه ؟ چه یا الله ما په تورات کی دیوامت نیک صفت ولیده چه دهغوی دیوی نیکی بدله ( لس) برابره وي، او د بدی ( گناه) بدله به ئی یوه په یوی، دا کوم امت دی؟ نو اللهﷻ وفرمائل چه دا امت دمحمدﷺ دی. موسی علیه اسلام الله ﷻ ته عرض وکړ چه یا الله ما په تورات کې دیو امت نیک صفت ولوستی ، کله چه دیوکار دکولو اراده وکړی، نو استخاره کوی، او بیا وروسته له استخاری عمل کوی، دا کوم امت دی؟ نو اللهﷻ وفرمائل چه دا امت دمحمدﷺ دی، موسی علیه السلام الله ته عرض وکړ چه یا الله ما په تورات کی ولوستل دیو امت نیک صفت ، کله چه بدعمل وکړی نو نیکو کاره ئی دهغه لپاره داالله څخه بخښښ غواړی، دا کوم امت دی؟ نو اللهﷻ وفرمائل چه دا امت دمحمدﷺ دی. موسی علیه السلام الله ﷻ عرض وکاوه چه ما به تورات کې ولیده چه یو امت به د بیت الله الحرام حجونه کوی، دا کوم امت دی؟ نو اللهﷻ وفرمائل چه دا امت دمحمدﷺ دی. موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکړ، چه یا الله ما په تورات کې دیو امت نیک صفت ولیده ، چه هغوي خپله وینه ستا په لیاره قربانوې ، دا کوم امت دی؟ نو اللهﷻ وفرمائل چه دا امت دمحمدﷺ دی. موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکړ چه یا الله زه د یو امت نیک صفت په تورات کې گورم چه هغوي ستا په لار کې جهاد کوي او دجهاد او هجرت پر مشلکاتو صبر کوی ، دا کوم امت دی؟ نو اللهﷻ وفرمائل چه دا امت دمحمدﷺ دی.

موسی علیه السلام والله ﷻ ته عرض وکړ چه یا اللهﷻ ما په تورات کی دیو امت نیک صفت ولیده ، کله چه گناه وکړی او بیا اودس کوي او ستا عبادت کوی، ( لمونځ کوئ) نو ته ئی دگناه ورته عفوه کوی، دا کوم امت دی؟ نو اللهﷻ

وفرمائـل چـه دا امـت دمحمـدﷺ دی.
موسی علیه السلام الله ﷻ تـه عـرض وکـړ چه یا الله ما په تورات کې دیوامـت نیـک صفت ولیده ، چـه ستا د ټولـو رسـولانو د صداقت گواهی ورکوي، دا کوم امت دی؟ نو اللهﷻ وفرمائل چه دا امـت دمحمـدﷺ دی. موسی علیه السلام الله ﷻ ته عـرض وکړی چه یا الله ما په تورات کې دیو امـت نیک صفت ولیده چه هغوي لره دغنیمـت دمال مصرفول جائز او حلال دی ، دا کوم امت دی؟ نو اللهﷻ وفرمائـل چـه دا امـت دمحمدﷺ دی. - موسی علیـه الـسلام الله ﷻ ته عرض وکړی چه یا الله ما پـه تـورات کې دیو امت نیک صتف ولیده چه هغـوي لره تا د ځمکی ټول مخ پـاک او دلمانځـه لپاره جائز گرځولی؟ ، دا کـوم امـت دی؟ نو اللهﷻ وفرمائل چه دا امـت دمحمـدﷺ دی..

موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکړ چه یا الله ما په تورات کـې دیـو امـت نیک صفت ولیده چه تر (۳۰) امتونو زیات به دهغه امت دیو سړی عزت ډیر وی،، دا کوم امت دی؟ نـو اللهﷻ وفرمائـل چـه دا امت دمحمدﷺ دی.

موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکړی چه یا الله ما په تورات کې دیو امـت نیک صفت ولیده چه کله په قهـر شـی نـو دلا اله الا الله ذکر کوی او کله چه دیواوبل سره منازعه کوی نو سـبحان الله وائـی ، دا کوم امت دی؟ نـو اللهﷻ وفرمائـل چـه دا امت دمحمدﷺ دی.

موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکړ چه یا الله ما په تورات کـې دیـو امـت نیک صفت ولیده کله چه دوي پـه غرونـو او گیاوو باندې تیریږی، نو غروته او بـوټی دحال په ژبه یو او بـل تـه د دوی د راتـگ زیری ورکوي ، دا کوم امت دی؟ نو اللهﷻ وفرمائل چه دا امت دمحمدﷺ دی.

موسی علیه السلام الله ﷻ ته عـرض وکړی چه یا الله ما په تورات کې دیو امـت نیـک صـفت ولیـده چـه د دوی دنیکـو اعملاو او ارواحـو لپـاره د آسمان دروازی خلاصیږی ، دا کـوم امـت دی؟ نـو اللهﷻ وفرمائل چه دا امت دمحمدﷺ دی.

موسی علیه السلام الله ﷻ ته عـرض وکړ چه یا الله ما په تورات کـې دیـو امـت نیک صفت ولیده چه تا هغوي تـه دغـم او مصیبت پر وخت خبره داسترجاع ښودلی ده، دا کوم امت دی ؟ او بل دی هغو ته د مصیبت پروخت دصبر، لمانځه لارښوونه کـړی ده ، دا کـوم امـت دی؟ نـو اللهﷻ وفرمائل چه دا امت دمحمدﷺ دی.

موسی علیه السلام الله ﷻ ته عـرض وکړ چه یا الله ما په تورات کـې دیـو امـت نیک صفت ولیده چه ته او ستا ملائکی پر هغه امت درود وائی ، دا کـوم امـت دی؟ نو اللهﷻ وفرمائل چه دا امـت دمحمـدﷺ دی.

موسی علیه السلام الله ﷻ ته عـرض وکړ چه یا الله ما په تورات کـې دیـو امـت نیک صفت ولیـده چـه دهغـه امـت نیکـو کاران به بی له حسابه جنت تـه داخلـوی، نو دا کوم امت دی؟ نو اللهﷻ وفرمائل چه دا امت دمحمدﷺ دی.

موسی علیه السلام الله ﷻ ته عـرض وکړ چه یا الله ما په تورات کـې دیـو امت نیک صفت ولیده چه دمقصد سره بـه ئـی اسانه حساب کوی، او ظـالم تـه بـه ئـی د توبی په صورت کې عفـوه کـوی، دا کـوم امت دی؟ نو اللهﷻ وفرمائـل چـه دا امـت دمحمدﷺ دی.

موسی علیه السلام الله ﷻ ته عـرض وکړ چه ما هـم ددی امت لـه ډلـی څخـه وشمیره، نو الله ﷻ ورتـه وفرمائـل چـه یـا موسی ته د دوی له ډلی څخه ئی. او دوی ستا له ډلی څخه دي، ځکه ته هم زمـا پـر دین ئی او دوی هم زما پر دین دی، او مـا تا لره پخپل رسالت او په خپلو خـبرو سره فضیلت درکړیدی، نـو تـه بایـد زمـا ددی احسـان قـدر دانـی وکـړی موسـی علیـه السلام الله ﷻ ته عرض وکړ، چه یا الله مـا په تورا ت کې دیو امت نیک صفت ولیـده چه دقیامت پـه ورځ بـه ددوی صفونه لـه مشرق څخه بیا تر مغـرب پـوری او ددوی عزت ، قدر او منزلت ته به هیڅ امـت نـه رسـیږی، دا کـوم امـت دی؟ نـو الله جـل جلاله ورته وفرمائل چه دا امت د محمدﷺ دی ، موسی علیه السلام اللهﷻ تـه عـرض وکړ، چه یا الله ما په تورا ت کې دیو امت نیک صفت ولیده چه دا امت فقط د جهاد سره محبت لری، او که پخپـل بستر کـی هم وفات شی، نو درجی او منزلت به ئـی د شهیداوو وی، دا کوم امت دی ، نـو الله ﷻ ورته وفرمائل چه دا امـت د محمـدﷺ دی .

موسی علیه السلام الله ﷻ ته عـرض وکړ، چه یا الله ما په تورا ت کې دیو امت

وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا رَحْمَةً لِّلْعَالَمِينَ

نیک صفت ولیده چه ستا په لار کې دهیڅ ملامتونکی پروا نه ساتی، دا کوم امت دی ، نو الله ﷻ ورته وفرمائل چه دا امت د محمدﷺ دی .

موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکړ، چه یا الله ما په تورا ت کې دیو امت نیک صفت ولیده چه دمؤمنانو په مقابل کې به ډیر نرم او عاجزه وی، خو دکفارو په مقابل کی به نه په خولا کیدونکی او تند خویه وی، دا کوم امت دی ، نو الله ﷻ ورته وفرمائل چه دا امت د محمدﷺ دی .

موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکړ، چه یا الله ما په تورا ت کې دیو امت نیک صفت ولیده چه صدیق به ئی افضل دصدیقینووی، دا کوم امت دی ، نو الله ﷻ ورته وفرمائل چه دا امت د محمدﷺ دی .

موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکړ، چه یا الله ما په تورا ت کې دیو امت نیک صفت ولیده چه تا له دی امت څخه وړاندې پر نورو امتونو وجنت ته داخلیدل حرام ګریدی، دا کوم امت دی ، نو الله ﷻ ورته وفرمائل چه دا امت د محمدﷺ دی .

موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکړ چه الله ولی امت دمحمدﷺ تربنی اسرائیلو په فضیلت کې اوچت دي، نو الله ﷻ ورته وفرمائل چه یا موسی بنی اسرائیل له تا څخه وروسته خپل دین بدل او تحریف کړی لاکن امت دمحمدﷺ دهغه و سنت او ته اسؤیه تغیر ورنه کړی، او هم زما کلام چه ما ورته نازل کړیدی ، نو ځکه دهغوی فضیلت تر نورو امتونو زیات دی، او دهغوی بنی می تر ټولو بنیانو افضل ګرزولی ، او دقیامت په ورځ به لمړی له قبره بعث کیږی او د قیامت په ورځ به هم لمړی د شفاعت اجازه ورکول کیږی، او تر ټولو لمړی شفات کوونکی به وی، موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکړ، چه ما په تورات کې دیو امت نیک صفت ولید کله چه دسپرلی پر شا سپاره شي نو ستا حمد وائی، او ته هم هغوي ته دګناهونو بخشش کوی ، دا کوم امت دی؟ نو الله ﷻ ورته وفرمائل چه دا امت دمحمدﷺ دی. یو حدیث ابونعیم پخپل کتاب دلائل کې د ابی هریرة ﷺ څخه نقلوی چه رسول الله ﷺ وفرمائل، کله چه پر موسی علیه السلام تورات نازل شو، او هغه ولوسته، نو په تورات کې ئی دیو امت نیک صفت ولیده چه دا امت به آخر د زمانی او په قیامت کې به اول وی، نو موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکړ چه یا الله ﷻ چه دا افتخار زما د امت نصیب کړه، نو الله ﷻ ورته وفرمائل چه دا افتخار دمحمدﷺ دامت دی.

موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکړ، چه ما په تورات کې دیو امت نیک صفت ولید کله چه هغوي دوعا کوي نو ته ئی قبلوی او کله چه نور خلک د دوی په حق کې دوعا کوی ، نو هم ئی ته قبلوی، نو یاالله دا فضیلت زما امت ته ورکړي، نو الله ﷻ ورته وفرمائل چه دا فضیلت دمحمدﷺ دامت دی، موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکړ چه یا الله ﷻ دیوامت لپاره (فئ) تا حلال ګرزولی ،دا زما دامت نصیب کړه، نو الله ﷻ ورته وفرمائل چه دا امتیاز دمحمدﷺ دامت لپاره دی. موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکړ چه یا الله ﷻ دیوامت په تورات کی ډیر نیک صفت ذکر شویدی کله چه دیونیک کار اراده وکړی، نو ته هغوئ ته نیک بدل ورکوی، او که عمل ئی وکړی ، نو بیا لس برابر بدل ورکوی، نو دا زما امت ته ورکړه، نو الله ﷻ ورته وفرمائل چه دا امت دمحمدﷺ دی.

ابونعیم پخپل کتاب الدلائل کی له عبدالرحمن المغافری څخه روایت کوی چه کعب الاحبار دیهودو یو عالم ولیده چه ژاړی، نو ده ورته وویل چه ولی ژاړی، نو هغه ورته وویل ، چه د ژوند ځینی کارونه می ژړوي، نو کعب الاحبار ورته وویل، چه زه په الله ﷻ قسم خورم که زه

تا لره خبر درکړم نو بیا به نه ژاړي ، نو ته زما خبره مني، نو هغه ورته وویل چه هو، نو کعب الاحبار ورته وویل چه موسی علیه السلام په تورات کې د یو امت نیک صفت ولیده، چه الله ﷻ فرمائی چه تاسی بهترین دامتونو یاست ، چه خلک نیکی ته امر کوی، او له بدو نه ئی منع کوی ، او تاسی پر اول او آخر کتاب ایمان لری، او دالله ﷻ په لاره کې جهاد کوی له کفارو سره ، نو موسی علیه السلام الله ﷻ ته عرض وکړ چه یا الله ﷻ دا فضیلت زما امت ته ورکړه، نو الله ﷻ ورته وویل چه دا فضیلت دامت دمحمد ﷺ دی، نو عالم دیهودو ورته وویل چه هو! نوکعب الاحبار ورته وویل چه ددی امت پر نبی ایمان راوړه، بیا به ډاډمن ئی او نه به ژاړی، له امام احمد بن حنبل څخه روایت دی ، چه په تورات کې راغلی چه الله ﷻ فرمائی ای د آدم زویه د الله نه وویریږه، کله چه په خیټه موړ شوی نو وږی انسان هم درپه یاد کړه.

بل روایت امام احمد بن حنبل له قتاده څخه روایت کوي چه په تورات کې راغلی، الله ﷻ فرمائی چه ای د آدم زویه ته رحم کوه، چه پر تا رحم وشی که چیری څوک دالله ﷻ پر بندگانو رحم نه کوی، نو الله ﷻ به پر ده باندی رحم نه کوی. نو ته څه فکر کوی چه ته د الله پر بندگانو رحم نه کوی او الله ﷻ دی بیا پر تا رحم وکړي؟

بل روایت له امام احمد بن حنبل څخه دی، چه الله ﷻ په تورات کې لیکلی دی چه ای د آدم زویه! ځان دی زما د عبادت لپاره فارغ کړه، نو زه به ستا زړه د بی ځایه غوښتنو او حسد څخه خلاص کړم. او فقر به درڅخه بند او لیری کړم، او که دی دا کارونه کاوه نو زړه به دی له حرصه او حسد څخه ډک کړم، او فقر ته به دی حواله کړم.

امام احمد بن احنبل له مالک بن دینار څخه روایت کوی چه الله ﷻ په تورات کی فرمائی، دهر هغه چا چه گاونډی گناه کوی او دی ئی نه منع کوی، نو دی ئی هم شریک دجرم او گناه دی، په یو بل روایت کې امام احمد بن حنبل روایت کوی چه الله ﷻ وموسی علیه السلام ته په تورات کی خبر ورکړی، هر هغه څوک چه ددنیا سره محبت کوی ، او د الله ﷻ حکم هیر کړی، نو الله ﷻ له دهغه سره بغض کوی، او هر هغه څوک چه ددنیا سره بغض کوی، نو الله ﷻ دهغه سره محبت او مینه کوی، او څوک چه ددنیا عزت کوی، نو الله ﷻ به ئی ذلیل کړی، او چا چه ودنیا ته په کم نظر وکاته ، نو الله ﷻ به عزت ورکړی ، ابن ابی شیبة له کردوس ثعلبی څخه روایت کوی چه ما په تورات کې ولوستل چه الله ﷻ فرمائی متقی اوسه ځکه چه وقایه (ځان ساتل) په تقوی سره ده، رحم کوه نو الله ﷻ به رحم درباندې وکړي، دپورته الهی لارښوونی چه په کتاب الله ( تورات ) کې رب العزت وموسی علیه السلام ته کړی، او سربیره پر د ی الله ﷻ د محمد ﷺ پر امت چه دکومو احساناتو پیرزوینه پردی امت باندې کړیده نو پکار دا ده چه مونږ مسلمانان د الهی ارشاداتو مطابق خپل عمل او عقیده جوړه کړو، او دهغه ذات چه زموږ پیداکوونکی، لویه ونکی ، روزی راکونکی، صحت راکونکی، اولاد راکونکی، وژونکی، او بیا د حساب کولو لپاره مو راژوندې کوی، خپل معبود وگڼو او دهغه دحکمونو مطابق په صفت دیو نیک مسلمان ځانونه جوړ کړو ننی انسانی غمیزی او په تیره بیا د نړی د مسلمانانو کړاوونه، درپه دری ، لوږی، نیستی، پسمانی، بی اتفاقی، ذلت او وکفر ته د محتاجی او دکافرو ترمالی قوت لاندې ژوند دا هغه عوامل او علتونه دی چه مسلمانان ورسره لاس او گریوان دي، په حجت الوداع کی دعرفات په ورځ ددی مبارک ایات نزول چه الله ﷻ فرمائی چه ما ستاسی د ژوند او مرگ لپاره یو داسې لارښود غوره کړ او پر تاسې مې احسان وکړ او زه ستاسی څخه د اسلامی اصولو پربنیاد دهغوي په منلو سره راضی کیږم، نو ایا رښتیا هم ننی مسلمان الهی شریعت ته منقاد دي؟ ایا دمسلمانانو ننی ژوند او کړه ، خوراک، څښاک، معاملات، حقوق،مکافات، مجازات، داسلامی او شرعی اصولو مطابق دی؟ جواب (منفی) بلکل نه، او د ټولو اسلامی احکامو مغایر دی، یوازی دعباداتو په برخه کې هغه هم په ناقص ټول څه نا څه چه دا اسلام دمبارک دین یوه برخه ده متعهد دی، حال دا چه مسلمان باید خپل ځان کورنی . محله، و اسلامی اصولو ته وهڅوی او دا حکم فرض عین دی، په آخر کې دا دوعا کوو چه الله ﷻ موږ مسلمانانو ته د الهی احکامو دمنلو، عمل او عقیدی توفیق راکړی ( آمین )

جمال

# د ارګ د میلیونونو افغانیو مزې

# او د ملت سپېرې شونډې

دا شونې ده لومړی ځل وي چې د یو نظام تر بدلون وروسته رسنیو ته داسې اسناد په لاس ورځي چې په میلیونونو افغانۍ یوازې په هسې کړنو لګول شوي دي، خو په ټول کې دا اسناد په داسې حال کې خپرېږي چې همدا مسولین او ان عادي رئیسان اوس ډېر څه لري.

دا اسناد د لومړي ځل لپاره په ټولنیزو پاڼو کې را ښکاره شول او اوس اوس رسنیز شوي دي ډېری پخوانی مسولین یې په اړه چوپ دي، خو په ټول کې دا پیسې له دریو مدرکونو ورکول شوي دي، د چاروادارہ چې مدبریې په راس کې و، ریاست دفترچې کریم خرم یې په راس کې و او فرهنګي مشاوریت چې زلمی هیوادمل یې په راس کې و.

په دې لیست کې ډېری پیسې په مبهم ډول لګول شوي دي د بیلګې په ډول څو میلیونه افغانۍ تش په نوم کمیسیون ته ورکول شوي دي مشخصه نه ده چې کوم کمیسیون ته.

په اسنادو کې ان په رسنیو کې ډېر غورځې پرځې کونکی نقاد رمضان بشردوست، د راه مدنیت په نوم ورځپانه او... هم شته چې د دوی کړه وړه او د ارګ خلاطونه په خپله د پوښتنې وړ دي.

له دې سره سم هغه پخوانی متل را یاد شو چې وایي وایي د ډول غږ لرې ښه ځي، ځکه په افغانستان کې څلور نیم میلیونه وګړي ترسخت فقر لاندې ژوند کوي او د حکومت لوړ پوړو چارواکو بیا میلیونونو افغانۍ حیف او میل کړي دي او اوس مې زړه ته لوېږي چې یو وخت په فیسبوک کې د سهارد اته زړه وطني هګیو خوړولو کیسه هم ډنډوره نه بلکه یو ریښتونې واقعیت و.

دا پیسې د مخور، ملي شورا د غړي، استاد، پوځي سرتېري، سلاکار، وزیر، لومړی مرستیال، دوهم مرستیال په نومونو ورکول شوي دي او یوازې په مزارکې جنډه چې یو خرافاتي چاردی او تر ډېره دیني مخینه هم نه لري د خوار ملت له بیت المال څخه په څو میلیونه افغانیو پورته شوې.

په دې منځ کې ترنوي میلیونو ډېرې افغانۍ یوازې په ۱۳۹۲ کال کې د ولسمشر په فرمان دې کسانو ته ورکول شوي دي.

په ۱۳۹۲ کال کې د ولسمشری مانۍ لګښتونه

یو پنځوس میلیونه شپږ زره درې سوه پنځه دیرش افغانۍ د ولسمشری مانۍ لګښتونه

دوه نیم میلیونه افغانی د ولسمشر د دوهم مرستیال درملنه.

دوه میلیونه ۸۴۱۰۰ افغانی د ولسمشر د دوهم مرستیال د تک راتک لګښت.

پنځه میلیونه اته لکه او ۳۸۴۸۰ افغانی د ولسمشر د دوهم مرستیال د چارتر کرایه.

څلور میلیونه افغانی د کمیسیون د غړو تنخواوې خو کمیسیون معلوم نه دی.

دوه میلیونه او ۵۳۰۰۰ افغانی د ولسمشری مانی سلاکار محمد ایوب زرین ته پکپ موټر اخیستل شوی.

یو میلیون او دوه سوه زره د ولسمشر د لومړي مرستیال د سلاکار صاحب نظر مرادي میاشتنی معاش.

۱۵ میلیونه افغانی یوازې او یوازې په مزارکې د سخي د جنډې په لګیدو لګول شوي دي.

یو میلیون افغانی د ولسمشر د دوهم مرستیال د خدماتو پر لیدنه لګیدلي دي.

پنځه میلیونه افغانی د لومړي مرستیال د جنازې په مراسمو لګیدلي دي.

دوه میلیونه اوه سوه زره ۶۷۲۶۹ افغانی د لومړي مرستیال د کور شپږ میاشتنی کرایه.

نولس میلیونه او شپږ سوه زره افغانی قزاقستان ته د ولسمشر د دوهم مرستیال د سفر د تلي پلاوي لګښت.

درې میلیونه افغانی د احمدشاه مسعود د شهادت په تلین لګول شوي دي.

د ولسي جرګې غړو هم په ۱۳۹۲ کال کې د خپلو اقتصادي ستونزو او درملنې په موخه تر درې نیم میلیونو ډیرې افغانی ترلاسه کړي دي.

په دې منځ کې قومي مشرانو، د سولې شورا غړي، استادان، پوځیان، عادي وګړي چې شوني ده د لوړپوړو دولتی کسانو خپلوان وي، ملا امامان او نورو ته هم دا پیسې رسیدلي دي.

**د اسنادو پر بنسټ:**

۱۴ میلیونه اته لکه ۵۵۴۰۵ افغانی لاندې کسانو اخیستي دي:

په دې منځ کې اوه میلیونه د میدان وردګو د بهسودو له زیانمنو سره مرسته شوې.

دوه سوه زره افغانی هغو ته چې د کونړ په پیښه کې زیانمن شوي مرسته شوي دي.

په ۱۳۹۳ کال کې ولسمشری مانی تر دوه اتیا میلیونو ډیرې افغانی لګولي دي چې په دې پیسو کې د ملي یووالي حکومت ځینې چارواکو ته هم ونډه ورکول شوې.

**د اسنادو پر بنسټ**

یولس میلیون او دوه سوه زره افغانی د پخواني ولسمشر د میلمستون په ترمیم لګول شوي دي.

دوه لکه اتیا زره افغانی د لومړي مرستیال د میلمستون کرایه شوې.

پنځه لکه ۲۲۲۴۰ افغانی د اجراییوي رئیس د لومړي مرستیال محمد خان د شیرپور د کور کرایه شوې.

۶۲ میلیونه شپږ لکه او دوه اتیا زره افغانی لوړپوړو او عادي چارواکو ته اوه زرهی موټر او پنځه عادي موټر اخیستل شوي دي.

یو میلیون درې سوه او اته زره افغانی د چارو ادارې د دیرشو امتیازي تنخواوو او دیرشو کارکونکو لپاره ورکول شوي دي.



نهــه لکــه ۲۸۱۹۸ افغانی د ولسمشـر دوهـم مرسـتیال تـه پـه دریمـه کارتـه کې دوه ودانــی پــه کرایه شوي دي.

پنځـــــــه میلیونه افغانی د ولسمشری مانی او اجراییـــــوي ریاســـــت د لوړپوړو مسولینو جـانبی لګښـتونه شـوي دي.

یو میلیون افغانی هم ایران ته د اجراییوي ریاست د دوهم مرستیال د سفر جانبی لګښتونه.

او۵۸ زره افغـانی هـم د غزنـي د انـدړو ولسـوالی د اوسیدونکي د پوهنتون فیس ته ورکول شوي دي.

هڅه مووکړه څوپخواني مس ولین په دې اړه څه و وایي خودوی له ځواب ویلو ډډه وکړه خودا په داسې حال کې ده چې تر دې مخکې امریکې ویلي و چې دوی ۱۰۴ میلیارده ډالره لګولي دي چې ډیری دا پیسې حیف او میل شوي دي.

لـه دې سـره سـره چې بـه تیرو کلونـوکې د حکـومتي چارواکو مزې او چړچې نوې خبره نـه ده خـودا لـومړی ځـل دی چې رسنی داسې اسـنادوتـه لاسرسی مـومي، پـه دې اسـنادوکـه لا ډیـرغـور وشي ډیـرداسې خلـک بـه مخې تـه درشي چې اډوزړه دې نه مني.

خـودا پـه داسې حـال کې ده چې اوس د همـدې فاسـد نظام ټول ټال چارې اشرف غني او عبدالله ته سپارل شوي دی خـودوی هـم لـه دې خلاطونـوبرخـه من شـوي دي او څـو میلیونـه افغـانی د دوی لـه ورتـګ سـره سـم ددوی کسـانو تـه موټرې اخیستل شوي، کورونه ورته په کرایه شوي دي.

ربښتیا هم چې د ارګ یا مرګ شعارپه دې ارزي چې بیا بیا زمزمه شي ځکه په یو خواروطن کې دومره لګښتونه زما په ځیرد غریب لیکوال د سرویښته را پورته کوي.



# په بدن کې د ويټامينونو

# د کموالي نښې

- د عضلاتو، د ګوتو د بندونو او پښو درد:
پورته نښې په وجود کې د ويټامينونو د کموالي نښې دي. هغه غذاوې وخورئ چې کلسيم، پتاشيم او مګنيزيم لري. هغه کسان چې ډېر ورزش کوي له دې حالت سره مخ کېږي، خو دوی ته توصيه کېږي، چې بايد ګيلاس، منې، انګور، کيلې او سبزيجات ډېر وخوري.

**-د شونډو چاودېدل:**

که مو شونډې وچاودېدې او يا يې ځنګونه زخمي شول، نو بدن مو د بي ويټامين له کموالي سره مخ دی. کېدای شي وجود مو د بي دوه، بي درې او بي دولس ويټامينونو له کمي سره هم مخ وي. دا ستونزه عموماً په هغه کسانو کې ليدل کېږي چې اکثريت وخت سبزيجات خوري او يا مناسب غذايي رژيم نه لري.

ددې ستونزې د له منځه وړو لپاره حبوبات او بادام وخورئ.

**ـ د زياتې ستړيا احساس:**

که تېره شپه مو هم کافي خوب کړی وي، خو بيا هم د ورځې په اوږدو کې له زياتې ستړيا کړېږئ، نو وجود مو د بي دوه ويټامين له کمي سره مخ دی. ددې ستونزې د لمنځه وړو لپاره لبنيات، د چرګې هګۍ او غوښه وخورئ.

**ـ د پښو او لاسونو ويدېدل:**

د کار پرمهال مو اکثريت وخت پښې او لاسونه ويدېږي او د ګوتو په برخه کې د سوزش احساس کوئ، نو دا ستونزه د بي دولس او بي شپږ ويټامينونو د کموالي له وجې ده. ددې ستونزې د حل لپاره ګازې او لبلبو وخورئ. هګۍ هم په غذايي مهالوېش کې ورزياتې کړئ

**ـ په ملا ، ورنونو او اوږو باندې د زخمونو نښې نښانې:**

که چېرې مو د وجود په پورته مشخصو ځايونو دغسې نښې احساس کړې، نو ستاسو وجود د ويټامين اې او ډي له کموالي سره مخ دی. ددې ستونزې د حل لپاره پاڼه لرونکي سبزيجات وخورئ او هغه غذاوې مهالوېش کې ورزياتې کړئ، چې ويټامين اې لري. د ماهي غوښه هم ښه ده، خو د ورځې لس پنځلس دقيق لمر ته هم وګرځئ.

**ـ خفګان:**

په خفګان د اخته کېدو بېلابېل عوامل شته دي. يو له دغو څخه يې د ډي ويټامين کموالی دی. تازه څېړنه په

ډاګه کوي، هغوی چې د ژمي په اوږدو کې د ډي ویټامین ترلاسه کوي، نو د هغوی په پرتله خوښ او ښه روحیه لري، چې بدن یې د ډي ویټامین په کموالي اخته وي.

اما تاسو باید پدې فکر کې ونه اوسئ چې د کال په کومه برخه کې یاستئ، خو بدن مو باید د ډي ویټامین پوره کړي. د لمر له وړانګو د ډي ویټامین ترلاسه کول او هغه خواړه خوړل چې د ډي ویټامین لري له خفګان څخه مو ژغورلی شي.

**ـ د ویښتانو توئېدل:**

د ویښتانو توئېدل هم ګڼ عوامل لري، خو یو له دغو څخه یې د بیوتین (د ویټامینونو له کورنۍ څخه دی) کموالی بلل کېږي. په ځانګړي ډول هغه ورزشکاران چې خامې هګۍ خوري د بیوتینو له کموالي سره مخ کېږي او ویښتان یې توئیږي.

په خامه هګۍ کې د (آویدین) په نوم یوه ماده شته، چې د بیوتین موادو د جذب مخه نیسي. په همدې اساس ورزشکارانو ته توصیه کېږي، چې د خامو هګیو له خوړلو ډډه وکړي. که چېرې ددې عادت پرېښودل ورته ستونزمن وي، نو بیا دې په غذايي مهالوېش کې سبزیجات او میوه هم ورزیاته کړي.

**ـ د سترګو د دید کمزورتیا:**

که چېرې د شپې لخوا مو د سترګو دید بیخي کمزوری کېږي، نو بیا مو وجود د ویټامین اې له کموالي سره مخ دی. تاسو ته به معلومه وي چې ګازرې ددې ستونزې د حل لپاره تر ټولو ښه او اسانه نسخه ده.

**ـ بې اشتهايي:**

د بې اشتهایۍ ګڼ عوامل شته، خو یو له دغو څخه یې د بیوتین موادو کموالی دی. که له دې ستونزې سره مخ یاست، نو حل لاره یې داده چې بادام، هګۍ او حبوبات وخورئ.

**ـ ژړه بدوالی او د ګېډې درد:**

که چېرې له داسې حالت سره مخ شوئ، چې ګېډې مو درد کاوه او یا په دوامداره ډول زړه مو بد، بد کېده، نو پوه شئ چې وجود مو د بي دولس ویټامین له کموالي سره مخ دی .

ددې ستونزې د حل لپاره جیګر، ماهي او هغه غذاوې وخورئ چې د بي دولس ویټامین لري.

**ـ له ژامو د وینې راتلل او هغه زخمونه چې نه ښه کېږي:**

که چېرې مو له ژامو وینه راتلله او یا مو په خوله کې داسې زخم راڅرګند شو، چې د ښه کېدو نه و، نو پوه شئ چې وجود مو د سي ویټامین له کموالي سره مخ دی. ددې ستونزې د حل لپاره مالټې وخورئ او اوس یې موسم هم دی، خو پر دې سربېره هغه میوې او غذاوې هم مه هېروئ چې د سي ویټامین لري لکه دُلمه یې شنه مرچ او کیوي.

**ـ سر درد او ګنګسوالی:**

سر درد او ګنګسوالی د بي درې ویټامین کموالي نښه ده. هغه ناروغان چې دوامداره اسهال او یا (د عقل زوال) له ناروغۍ سره مخ وي، نو د بي درې ویټامین د کموالي نښه ده. د غوايي او خوسکي جیګر، د چرګ غوښه او ماهیان د بي درې ویټامینونو غوره سرچینې دي.

**ـ اسهال:**

که په دوامداره ډول په اسهال ناروغۍ اخته شوئ، نو دا ښيي چې وجود مو د بي نهه ويټامين په کموالي اخته دی. ددې ستونزې د حل لپاره بايد د چرګ جيګر وخورئ. حبوبات او د غوايي يا خوسکي جيګر هم خوړلی شئ، خو پدې شرط چې ښه پوخ شوی وي.

**ـ بې خوبي:**

که کله داسې حالت درباندې راغی چې بيخي خوب نه وړئ، نو پوه شئ چې وجود مو د بي پنځه له کموالي سره مخ دی. ددې ستونزې اصلي عامل په بازار کې د پخوو شويو تيارو خوړو خوراک دی. که بې خوبي مو دوامداره شي، نو د پوستکي ښکلا ته مو هم زيان اړوي. د پسه جيګر يو له هغو خوراکونو دی چې ددې ستونزې په حل کې درسره مرسته کولای شي.

**ـ د پوستکي وچوالی:**

د پوستکي د وچوالي عوامل د اې او بي ويټامينونو کموالی دی. ددې ستونزې د حل لپاره سبزيجات، غله جات او د ماهي غوښه وخورئ



## دبرګډال پلار يوځل بيا له طالبانو مننه وکړه

امريکايې رسنيو دطالبانو له بند څخه دخوشي شوي امريکايې عسکردپلار په اړوند ليکلې دي چې پرطالبانو يې زړه بايللی او سخت ترينه خوښ دي.
دبرګډال پلار وايې چې طالبانو له دې سره سره چې په امريکايايې چاپو او هوايې بريدونوکې به يې دکورنۍ غړي له لاسه ورکول بياهم په دې فکرکې نشول چې په بدل کې يې برګډال ووژني.
نوموړي وايې په هغه ورځ چې دمولوي جلال الدين حقاني صاحب زوي دامريکايانوپه يوه بريد کې ژوند له لاسه ورکړ، زموږ ټول اميدونه ختم شول اوداسې مو وګڼله چې نور نو برګډال هم زموږ په منځ کې نشته
دی وايې ، وروسته خبرشو چې طالبانو برګډال ته هيڅ هم ندې ويلي ، اودطالبانو په دغه کارسره نه يوازې داچې طالبانو دبشريت اوانسانيت ټولومعيارونه په پام کې ونيول بلکې زموږ زړونه يې هم وګټل.
دبرګډال پلار يوکال وړاندې هم په تلويزوني مرکه کې ويلي وو ، چې امريکايان دطالبانو کورنۍ بمباروي ، دهغوي ښځې ، بچيان او سپين ږيري وژني خوبياهم طالبانو برګډال ژوندی پرې ايښی دي

# عفو وگذشت پیامبر صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

# هنگام دستیابی به قدرت

ترجمه : خالد ایوبی نیا

حلم، صبر و عفو الفاظ قریب المعنی هستند، اما میان آنها فرق دقیق و ظریفی وجود دارد که هر یک از آن الفاظ را از دیگری متمایز می‌سازد، برای این الفاظ حقایق متباین وجود دارد، در مبحث گذشته معنی حلم و صبر را توضیح دادم، اما عفوعبارت است از ترک مؤاخذه بر خطا و اشتباهات، سپس آن را در معنی ترک مجازات گناه بکار برده‌اند. و این فضایل سه‌گانه آدابی هستند که خداوند پیامبرش محمّد صلی الله علیه وسلم را بر آنها تربیت نمود، خداوند می‌فرماید:((خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِينَ)) گذشت داشته باش و آسانگیری کن و به کار نیک دستور بده و از نادانان چشم‌پوشی کن)). اعراف: ۱۹۹

در تفسیر ابن جریر طبری و ابن ابی حاتم و ابی الشیخ ابن حبان در مکارم الاخلاق و ابن ابی الدنیا به صورت مرسل و ابن مردویه به صورت موصول آمده است هنگامی که این آیه بر پیامبر صلی الله علیه وسلم نازل شد، از حضرت جبرئیل در مورد تأویل آن سؤال نمود، جبرئیل در جوابش گفت: باید از عالم حقیقی که این آیه از کلامش می‌باشد بپرسم؛ سپس رفت و بعد از سؤال نزد پیامبر صلی الله علیه وسلم آمد و فرمود: «یا مُحَمَّد، اِنَّ اللهَ یَأمُرُکَ اَن تَصِلَ مَن قَطَعَک، و تُعطِیَ مَن حَرَمَک، و تَعفُوَ عَمَن ظَلَمَک» ای محمد! خداوند تو را فرمان می‌دهد که با کسی که با تو قطع رابطه می‌کند ارتباط برقرار نمایی، و به کسی که تو را محروم می‌کند بخشش نمایی، وکسی را که به تو ظلم می‌کند ببخشایی» و خداوند می‌فرماید: ((وَلْيَعْفُوا وَلْيَصْفَحُوا أَلَا تُحِبُّونَ أَن يَغْفِرَ اللهُ لَكُمْ)) باید عفو کنند و گذشت نمایند. مگر دوست نمی‌دارید که خداوند شما را بیامرزاد؟)). نور : ۲۲

نمونه‌های آسان‌گیری، عفو وگذشت پیامبر صلی الله علیه وسلم بسیارند، از جمله در قانون گذاری؛ شیخین و ابو داوود از حضرت عائشه (رضی الله عنه) روایت می‌کنند که «ما خُیِّرَ رَسُولُ الله بین اَمرَینِ إلاّ اختارَ اَیسَرَهُما ما لَم یَکُن اِثماً، فَإن کانَ اِثماً کان اَبعَدَ النَّاسِ عَنه» پیامبر صلی الله علیه وسلم هرگز در بین دو چیز مختار قرار داده نمی‌شد مگر اینکه آسانترین آن دو چیز را برمی‌گزید ما دامی که گناه نمی‌بود. اگر گناه می‌بود پیامبر صلی الله علیه وسلم دورترین مردم نسبت به آن بودند». و در حدیث دیگری می‌فرماید: «یَسِّرُوا و لا تُعَسِّرُوا» آسان بگیرید و سخت نگیرید» و «اِنَّ هذا الدِّینَ یُسرٌ» بدرستیکه این دین دین آسانی است» و خداوند می‌فرماید: ((یُرِیدُ الله بِکُمُ الْیُسْرَ

وَلاَ يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ)) خداوند آسایش شما را می‌خواهد و خواهان زحمت شما نیست.[ بقره: ۱۸۵]

در این آیه اشاره به عمل به آنچه که آسان تر و ملایم‌تر است، وجود دارد به شرطی که گناه یا مکروه نباشد، زیرا خداوند دوست دارد که از رخصتهایی که برای انسان قرار داده استفاده شود همانطور که دوست دارد از عزائم استفاده شود.

در برخوردها: پیامبر صلی الله علیه وسلم به خاطر مسایل شخصی خویش از کسی انتقام نمی‌گرفت مگر اینکه حقوق خداوند پایمال می‌شد که آن وقت برای خداوند انتقام می‌گرفت، یعنی اگر کسی در پرده‌دری حرامهای خداوند مبالغه می‌نمود یا در حق یکی از بندگان خدا تجاوز می‌نمود آنگاه پیامبر صلی الله علیه وسلم از وی انتقام می‌گرفت. روایت است هنگامی که در روز اُحُد دندانهای پیامبر صلی الله علیه وسلم شکسته و صورتش زخمی شد، این حالت بر یارانش بسیار سنگین آمد و گفتند: چرا بر علیه آنان دعا نمی‌نمایی؟ پیامبر صلی الله علیه وسلم فرمودند: «اِنِّی لَم اُبعَث لَعَّانًا، و لِکِنِّی بُعِثتُ داعیاً و رَحمَةً، اللهُمَّ اهدِ قَومِی فَإِنَّهُم لا یعلَمُون» من مبعوث نشده‌ام که بر دیگران نفرین کنم، بلکه من به عنوان دعوتگر و رحمت برای جهانیان مبعوث شده‌ام، پروردگارا قومم را هدایت نما بدرستی که آنان نمی‌فهمند» و در این مورد خداوند می‌فرماید: ((وَمَا أَرْسَلْنَاکَ إِلَّا رَحْمَةً لِّلْعَالَمِينَ)) (ای پیغمبر!) ما تو را جز به عنوان رحمت برای جهانیان نفرستاده‌ایم. [انبیاء: ۱۰۷] از حضرت عمر (رضی الله عنه) روایت است که فرمودند: پدر و مادرم فدایت ای پیامبر خدا! حضرت نوح هم بر علیه قومش دعا نمود و فرمود: ((رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّاراً)) پروردگارا ! هیچ احدی از کافران را بر روی زمین زنده باقی مگذار)). [نوح: ۲۶] اگر اینگونه بر ما دعا می‌کردی ما همه هلاک می‌شدیم، کمرت لگد کوب شد، چهره‌ات زخمی و خون‌آلود گردید، دندان‌هایت شکسته شدند آنگاه حاضر نیستی جز خیر و نیکی برای آنان چیزی بگویی؟ پیامبر صلی الله علیه وسلم فرمود: «اللهُمَ اغفِر لِقَومِی فَإِنَّهُم لا یَعلَمُون» پروردگارا قومم را ببخشای به تحقیق آنان نمی‌دانند.» این نشانه‌ی نهایت فضیلت، اخلاق نیک، کرم نفس و نهایت صبر و تحمل است.

و از جمله محاسن اخلاق پیامبر صلی الله علیه وسلم: کنترل نفس، راهنمایی و گذشت وی می‌باشد. هنگامی که مردی منافق بنام ذو الخُویصرة بن زهیر تمیمی در رابطه با تقسیم غنایم بدر خطاب به وی گفت: ای محمّد عدالت را رعالت کن به تحقیق در این تقسیم رضایت خداوند در نظر گرفته نشد، پیامبر صلی الله علیه وسلم در جوابش جهل وی را بیان نمود و او را نصیحت کرد و به وی یاد آور شد و گفت: «وَیحَک، فَمَن یَعدِل، اِن لَم اَعدِل، خبتُ و خسِرتُ اِن لَم اَعدِل» وای بر تو اگر من عدالت نداشته باشم، چه کسی عدالت را رعایت می‌کند، اگر من عدالت را رعایت نکرده باشم پس من گمراه شده و خسارت دیده ام)). پیامبر صلی الله علیه وسلم یاران خود را که قصد کشتن او را نموده بودند از آن نهی نمود.

نمونه‌ای دیگر از این مثالها که از نمونه‌ی گذشته شگفت‌انگیزتر و مؤثرتر می‌باشد این است که: در غزوه ذات الرقاع سال چهارم هجری طبق روایت شیخین پیامبر صلی الله علیه وسلم به تنهایی زیر سایه درختی استراحت می‌نمود و یارانش نیز در حال استراحت و خواب قیلوله بودند غورث بن الحارث (طبق روایت بیهقی) که شجاع ترین فرد از میان قومش بود شمشیرش را از غلاف بیرون کشیده و خود را به بالای سر پیامبر صلی الله علیه وسلم رسانید، پیامبر صلی الله علیه وسلم در آن لحظه از خواب بیدار شد و او را شمشیر به دست و آماده بالای سرش

مشاهده نمود. به پیامبر گفت: چه کسی تو را از دست من نجات می‌دهد؟ پیامبر صلی الله علیه وسلم فرمود: خدا مرا نجات می‌دهد، با شنیدن این کلمه از دهان پیامبر شمشیر از دست غورث افتاد، پیامبر صلی الله علیه وسلم شمشیرش را برداشت و گفت: چه کسی شما را از دست من نجات می‌دهد؟ غورث گفت: تو بهترین کسی باش که شمشیر را به دست می‌گیرد، پیامبر صلی الله علیه وسلم او را رها نمود وغورث سالم به سوی قومش برگشت و گفت: از پیش بهترینِ مردم آمده ام )).

و از جمله این حوادث همانطور که شیخین روایت می‌کنند: زنی یهودی که- طبق روایت بیهقی و موسی بن عقبه در المغازی - زینب دخترحارث بن سلاّم بود مقداری گوشت گوسفند را مسموم نموده وآن را به پیامبر صلی الله علیه وسلم داد و بعداً اعتراف نمود که آن گوشت را مسموم کرده است اما پیامبر صلی الله علیه وسلم بعد از اعتراف از گناه اوگذشت نمود و او را عفو کرد، زیرا او برای خودش انتقام نمی‌گرفت، سپس پیامبر صلی الله علیه وسلم او را به خاطر وفات یاران خود مانند بشر- بن براء که بعد از یک ماه بر اثر این مسمومیت بیمار شد و وفات کرد قصاص نمود.

و همچنین پیامبر صلی الله علیه وسلم لبید بن اعصم یهودی که او را جادوکرده بود و خداوند با وحی و از طریق حضرت جبرئیل به وی خبر داد که ولید او را جادو کرده است و حالش را بیان نمود همانطور که احمد و نسائی و بیهقی آن را روایت می‌کنند، پیامبر صلی الله علیه وسلم نه تنها او را مجازات ننمود بلکه او راسرزنش هم نکرد.

و یکی دیگر از این حوادث: پیامبر صلی الله علیه وسلم عبدالله بن ابی، سرکرده منافقین و همدستان منافق وی را مؤاخذه ننمود با اینکه مرتکب جرائم گفتاری و کرداری شده بودند. بلکه به کسانی که به قتل آنان اشاره کرده بودند گفت: نه، تا اینکه مردم نگویند محمد یارانش را می‌کشد، این عمل پیامبرصلی الله علیه وسلم دلیل بر ترک برخی امور به علت مترتب شدن فسادی بزرگتر بر آن می‌باشد.



## د سلفو تر منځ دعوه

سلم بن قتیبة رحمه الله وايي: زه يو ځای ناست وم بشير بن عبد الله رحمه الله راباندې راغی راته کړه يې: دلته ولې ناست يې؟ ما ورته وويل: زما د اکا زوی دی له هغه سره مې دعوه ده، هغه زما د کور خواته په يوه شي دعوه کړې ده، بشير رحمه الله راته وويل: ستا پلار له ما سره ښېګڼې کړې وې، زه غواړم د هغو بدل درکړم، او هغه داسې چې زما نصيحت واوره: په والله دعوه او جنجال د سړي دين ته تر ټولو زيات تاوان رسوي، د سړي غيرت او ميړانه ختموي، د ژوند خوند خرابوي، او د سړي زړه او ذهن مصروف او بوخت ګرځوي.

سلم وايي: زه ولاړ شوم او روانيدم د اکا زوی مې راته وويل: څه کړې؟ ما ورته وويل: زه له دعوې تېر شوم، هغه راته وويل: پوه شوې چې زه په حقه يم، ما ورته وويل: نه، له هغه شي زه درتيرېږم، خو زه په دعوه ځان نه بدرنګه کوم، هغه راته وويل: زه هم هغه شی نه کوم هغه يې ستا. [موسوعة ابن أبي الدنيا ۴/۳۲۵]. دا د سلفو علماو رحمهم الله ترمنځ د دعوې يوه بيلګه ده، راځئ مورږ د موجوده زمانې خلک ليږ ځانونو ته متوجه شو چې پخپلو کې له يوه بل سره د دعوې په مهال څه سره کوو؟.

# مرغان ولې په نوبت مشري کوي؟

ژباړه: لطف الله لطیف

ساینس پوهانو معلومه کړې چې د مرغانو ډلې دا ټولنیزه ستونزه څنګه حل کړې چې څوک باید د ډلې مشري وکړي؟

د بریتانیا، جرمني او اطریش څېړونکو د یو ډول کل سرو لګ لګ مرغانو د خاصیتونو په هکله څېړنې کړې او موندلې یې دي چې هغوی د نوروغټيو مرغانو په شان په اوږدو سفرونو کې د الوتو په وخت ولې د "۷"بڼه غوره کوي. ساینس پوهانو دا هم موندلې چې دا مرغان د اوږدو سفرونو په وخت کې ولې په نوبت د ډلې مشري کوي.

دغو څېړونکو یو شمېر لګ لګ مرغان د زېږېدو د وخت څخه تر روزنې لاندې ونیول او د هغوی پر بدن یې داسې کوچني وسایل نصب کړل چې ساینس پوهان وکولای شي د دغو مرغانو د الوتو په وخت کې د هغوی موقعیت او د الوت لوری ثبت کړي.

وروسته دغه سیانس پوهان د یوې وړې مخصوصې الوتکې په مرسته والوتل، او روزل شوي مرغان یې هم وهڅول چې ورسره یوځای والوزي، وبې لیدل چې دا مرغان د اوږده سفر په ترڅ کې څه ډول الوزي او څه کوي.

هغوی وموندل چې دا مرغان د ډله ایز الوت په وخت کې د "۷"بڼه غوره کوي، یو له بله سره جوړه کېږي او د انرژي د ساتنې په خاطر یو له بله سره همکاري کوي.

**متقابله همکاري او په نوبت مشري کول**

کله چې دوه مرغان سره جوړه شي، یو وړاندې او بل ورپسې الوزي. مخکینی الوتونکی د هوا تر فشار لاندې ژر ستومانه کېږي نو ځکه د یو ټاکلي وخت نه وروسته تر شا کېږي او خپل جوړه ملګری پرېږدي چې مخته شي او د ډلې مشري وکړي.

کله چې دوه مرغان سره جوړه شي، یو وړاندې او بل ورپسې الوزي. مخکینی الوتونکی د هوا تر فشار لاندې ژر ستومانه کېږي نو ځکه د یو ټاکلي وخت نه وروسته تر شا کېږي او خپل جوړه ملګری پرېږدي چې مخته شي او د ډلې مشري وکړي.

د ټاکلي وخت نه وروسته هغه بېرته تر شا کېږي او خپل ځای شاتني الوتونکي ته پرېږدي.

د مخکیني الوتونکي تر شا د هوا داسې څپې را پیدا کیږي چې شاتنی الوتونکی پکې په آسانۍ سره الوتی شي او د هوا فشار ورباندې لږوي.

**د اکسفورډ پوهنتون څېړونکی برنارډ فویکل وایي:**

"هغه موده چې یو الوتونکی مخکې الوتنه اومشري کوي د هغې مودې سره چې وروسته یا شاته الوزي، تقریبا یو شانته او برابره ده، هغوي په نوبت مخکې او وروسته کېږي."

د اکسفورډ پوهنتون د زولوجې د څانګې دا څېړونکی وایي دوی غوښتل وپوهېږي چې الوتونکي څنګه کولای شي اوږده سفرونه وکړي او ولې نه ستومانه کيږي؟

هغه وايي: "دا الوتونکي له اطريش نه ايټاليا ته ځي چې ۱۵۰۰ کيلومتره لاره ده. د دې اوږده او ستومانه کونکي سفر په ترڅ کې ۳۰ سلنه واړه الوتونکي مړه کېږي."

**د نادره الوتونکو ژغورل**

د ساينس پوهانو د دې پروژې يوهدف دا و چې شمالي کل سري لګ لګان چې د ښکار له امله يې نسل په کمېدو دی وژغوري او وروزي چې وکولای شي بېرته اروپا ته مهاجرت وکړي.

د GPS وسايلو په مرسته چې ساينس پوهانو د يو شمېر روزل شويو الوتونکو پر بدن نصب کړي دي، هغوی کولای شي د دې الوتونکو د الوتنې لوری او موقعيت معلوم کړي.

پرتګالي څېړونکي ډاکټر سټيون د همدغو نادره الوتونکو په اړه د يوې مخکينۍ څېړنې په ترڅ کې موندلې وه چې هغوی د اوږدې ډله اييزې الوتنې په وخت کې د "V"بڼه غوره کوي او يو په بل پسې کتار په نوبت الوزي، د دې لپاره چې ستومانه نشي ځکه چې تر شا الوتنه آسانه او وړاندې الوتنه سخته وي.

څېړونکو يوازې پر يوې روزل شوې ډلې الوتونکو دا تجربې او څېړنې کړې خو فکر کوي چې ښايي د الوتونکو نور ډولونه به هم د اوږدو کلنيو ستومانه کونکو مهاجرتونو په وخت کې په همدې ډول الوتنه کوي.

## د نړۍ تر ټولو ستره استخباراتي بوديجه

د نويو نړيوالو شمېرو له مخې، د امريکا استخباراتي بوديجه د نړۍ په کچه تر ټولو ستره او لوړه استخباراتي بوديجه ګڼل کېږي. امريکا هر کال د خپلو استخباراتي فعاليتونو او جاسوسيو لپاره يو تريليون (۱۰۰۰ ميليارد ډالره) ځانګړی کوي.

ويل کېږي، دغه بوديجه د امريکا په دننه او د نړۍ په ګوټ ګوټ کې د امريکايي ګټو د خونديتوب په موخه استخباراتي چارو باندې لګول کېږي.

همدا اوس په امريکا کې ۱۷ استخباراتي څانګې او اداري فعاليت لري، او د معلوماتو او اطلاعاتو پر راټولو بوخت دي. دغه سازمانونه همدا راز د نړۍ په بېلابېلو هېوادونو کې هم فعاليت لري.

د کتونکو په باور د نړۍ په بېلابېلو برخو کې جګړې او نښتې؛ د هېوادونو او ولسونو ترمنځ لانجې او رواني تاوتريخوالي همدا راز د زياترو هېوادونو وېش د امريکا د استخباراتي ادارو د فعاليتونو زېږنده ده، چې د امريکايي ګټو د خونديتوب په موخه ترسره کېږي. حال دا چې په دغو پېښو هر کال په زرګونه انسانان قرباني کېږي.



# حضرت بلال رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ، مؤذن رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ...

هرگاه بلال

مي خواست اذان بگويد تا به "اشهد أن محمدا رسول الله" مي‌رسيد بغض گلويش را بسختگي مي فشرد، و اشک از چشمانشان سرازير مي گشت و با صداي بلند زار زار شروع به گريستن مي نمود.

پس از سالها بلال، رسول خدا (صلي الله عليه وسلم) را در خواب ديد. که به او مي فرمود: بلال، چقدر بي وفا شده‌اي؟ آيا وقت آن نرسيده که سري بما بزني...

بلال اندوهگين و گريان از خواب پريد. و فوراً عازم مدينه شد...

بلال در حاليکه بشدت مي گريست براي عرض سلام به روضه‌ي پيامبر اکرم (صلي الله عليه وسلم) نزديک شد.

حسن

و حسين بسوي او دويدند، بلال آنها را به آغوش گرفته، با مهر و شفقت بوسيد. نوه هاي عزيز پيامبر خدا (صلي الله عليه وسلم) به بلال گفتند: دلمان براي أذانت بسيار تنگ شده، اگر لطفي کني و در سحرگاهان أذاني بدهي بسيار شادمان خواهيم شد.

سحرگاه وقتي که سکوت بر همه‌ي شهر مدينه سايه افکنده بود بلال بخاطر شاد کردن نوه هاي محبوبش بالاي سقف مسجد برآمد. بناگاه مردمي که براي نماز تهجد برخواسته بودند نداي ملکوتي بلال را که در آسمان پيچيده بود شنيدند: الله اکبر.. الله اکبر...

شهر مدينه با شنيدن صداي بلال از خواب پريد. کسي گوشهايش را باور نمي کرد. برخي آب سرد بر سر و صورت خويش مي زدند و گمان مي بردند که شايد هنوز در خوابند. همه از خانه هايشان بيرون پريدند و مات و مبهوت و حيرت زده بهم خيره شده بودند. وقتي بلال ندا بر آورد که: أشهد أن لا إله إلا الله...

مردم حيرت زده‌ي مدينه بر بامها و کوچه ها و خيابانهاي شهر با يادآوري خاطرات پيامبر با صداي بلند مي گريستند. و وقتي بلال ندا برآورد: أشهد أن محمدا رسول الله...

زنها و دخترها از حجله هاي خويش برآمده به مردم شهر

پیوستند. همه‌ي مدینه آهنگ پرطنین گریه‌ي عشق و محبت بود. گویا رسول خدا (صلي الله علیه وسلم) از نو زنده شده بود.. نه .. نه.... بلکه گویا رسول خدا (صلي الله علیه وسلم) تازه چشم از جهان بسته بود. صدا صداي گریه بود و زاري... خاطره‌ي تلخ فراق رسول اکرم در اذهان مردم دوباره زنده شده بود. زخمهاي التئام نیافته‌ي وفات پیامبر از نو در دلهاي خونین مردم ترکیده بود. مدینه گریه بود و گریه تنها صداي مدینه. و بار دگر بلال خاموش گشت... و از خاطره هاي تلخ فرار کرده به سوریه پیوست...

وقتي امیر المؤمنین عمر (رضي الله عنه) براي بازرسي شام به آنجا رسید، مردم شهر به شدت از او التماس نمودند که بلال را مجبور کند ولو یک بار برایشان اذان دهد. هنگام نماز امیر المؤمنین بلال را خواست. و از او خواهش نمود اذان بگوید. پاهاي لرزان بلال و دل نخواسته‌ي او و خواهش عمر و التماس مردم او را به بالاي مناره رساندند. بلال اذان گفت... همه‌ي صحابه‌اي که پیامبر را دیده بودند و صداي اذان بلال را در کنار او شنیده بودند، با صداي او بیاد آن روزها افتاده اشک بر گونه هایشان جاري و صداي گریه هایشان شهر را به لرزه درآورد. همه چون مادران داغدار مي گریستند.. عمر غرق در گریه و اشک از حال رفت...

روزها گذشت .. و زمانه بلال را روي فراش مرگ خوابانید، همسرش در کنار او مي گریست..

بلال در حالیکه لبخند شادي بر لبان داشت، و چشمهاي امیدش از خوشحالي پیوستن به محبوب مي درخشید بدو نگریست وگفت: گریه نکن.. فردا عزیزانم را در آغوش مي گیرم.. فردا محمد و یارانش را ملاقات خواهم کرد..

بلال از شادي و شوق دیدار رسول خدا (صلي الله علیه وسلم) مرگ را با آغوشي باز پذیرا بود. بلال در عشق محمد و شوق دیدار او جام تلخ مرگ را چون عسل سرکشید و به آرزوي دیدار شتافت.. بلال به محبوبش پیوست...

رحمت خدا بر او بادا... پروردگار از او خشنود و راضي بادا...

درود بر تو اي بلال عظمت.. سلام بر تو اي کالبد عشق و محبت راستین...

## ادبي ټوټه

پلار مې زه په څلور کلنۍ کې یو څپېړه اوهلم، ستونې راته ونیوه خو بیاهم ما ونه ژړل...
په اوه کلنۍ زه یې د خپل دریشي په کمر بند وهلم ،ډیر زیات درد به یې هم کول خو بیا هم ما ونه ژړل...
په لس کلنۍ کې مې نور عادت شوی و بیاهم ما نه ژړل...
د پینځه لس کلنۍ په عمر کې وم پلار به مې په وړه خبره چې څه به یې په لاس کې وو په هغه به یې وهلم خو ما بیا نه ژړل....
په شل کلنۍ کې هم وهلم بیاهم پلار رابانــدې ګــران و مــا نــه ژړل...
پرون چې د پیځه دیرش کلنۍ په عمر شوم، پلار راباندې د څیپړې ګزار وکړ، په ژړا شوم د سترګو نه مې اوښکې اوبهېدې، د دې لپاره نه چې زه یې ووهلم، د دې لپاره چې د هغه په لاسونو کې هغه پخوانې زور نه و پاتې او لاسونه یې رپیده ځکــه پــه ژړا شــوم...

سرور

# د مرحوم مولوي عبدالحکیم حقاني ژوند او کارنامو ته کتنه

لیکنه عبدالرؤف حکمت

مولوي عبدالحکیم حقاني یو له هغو شخصیتونو څخه دی چې د شوروي یرغل په خلاف جهاد، داسلامي امارت په تأسیس او بیا د امریکا خلاف جهاد کې یې بارز او مخکښ رول درلود، نوموړی په دې دریو مرحلو کې خپل مکلفیت په ډیره ښه توګه ترسره کړی او د اسلامي نظام د نفاذ په لاره کې یې ستر خدمتونه سرته رسولي، په لاندې کرښو کې هڅه کوو چې دنوموړي په جهادي ژوند ځغلنده رڼا واچوو، ترڅو یې له کارنامو خبر او د راتلونکې لپاره یې له اوږدې مبارزې، ثبات او استقامت زده کړه وکړو.

**د ژوند ابتدایي مراحل**

مولوي عبدالحکیم حقاني د بازمحمد زوی په قوم پښتون – ترکی په ۱۳۱۸ هـ ش کال کې د هلمند ولایت په هزارجفت ولسوالۍ کې دنیا ته راغلی.

نوموړي ابتدایي زده کړې په خپل کور او مسجد کې ترسره کړې او د پنځلس کلنۍ په عمر وچې د دیني زده کړو د حصول لپاره یې دطالبۍ بستره په اوږه کړه ،نوموړی د زابل ارغنداب ته لاړ او هلته یې د مولوي دُرمحمد صاحب په نامه له مدرس عالم نه سبقونه شروع کړل، وروسته یې په همدې سیمه کې له قاضي عبدالحبیب صاحب ، په کندهار ښار کې له مولوي فضل الدین صاحب او د زابل په شاجوی کې له مولوي ضیاء الدین صاحب څخه دیني علم حاصل کړ ، تردې چې په ۱۳۵۲ هـ ش کال کې یې د زابل ولایت په شاجوی ولسوالۍ کې له مشهور عالم کمال الدین اخندزاده څخه د نبوي احادیثو سند ترلاسه کړ او له دیني علومو د فراغت دستار یې وتاړه .

د علم په دې اوږده سفر کې نوموړي ټول دودیز علوم لکه صرف ، نحو، بلاغت، فقه ، اصول الفقه، تفسیر، علم الحدیث، منطق، تجوید او نور مروج علوم حاصل کړل چې له فراغت وروسته یې د زابل په شاجوی ولسوالۍ کې د امامت او تدریس دنده پیل کړه، نوموړي په افغانستان کې د کمونیستي انقلاب تر وخته په همدې سیمه کې په امامت او تدریس بوخت و چې ګڼ شمیر طالبانو ته یې دیني کتابونه تدریسول .

**له کمونیستي کودتا وروسته**

په ۱۳۵۷ هـ ش کال کې چې کله د کمونیستانو لخوا په افغانستان کې کودتا وشوه او په وړاندې یې جهادي خوځښت پیل شو، دغه مهال مولوي عبدالحکیم صاحب د زابل په شاجوی کې په تدریسي چارو بوخت و، خو دجهادي حرکاتو له پیل سره یې له مجاهدینو سره هم تعلقات پیدا کړل او کرار کرار له تدریس څخه په جهاد ورګډ شو.

نوموړی تر دوو کلونو پورې په همدې سیمه کې و او کله چې په شاجوی کې جهادي خوځښت علني شو او ټولې اطرافي سیمې دمجاهدینو لاس ته ولوېدې، نوموړی له خپل ورور مولوي عبدالرازق صاحب او بل نږدې ملګري مولوي عبدالغفار صاحب سره

خپلې اصلي سيمې د هلمند هزار جفت ته لاړل ترڅو په دې سيمه کې چې تراوسه په کې د جهادي خوځښت څرک نه لګيده ، جهادي عمليات پيل کړي.

مولوي عبدالغفار وايي موږ چې کله د مولوي عبدالحکيم صاحب تر مشرۍ لاندې هزارجفت ته راغلو نو دغه وخت د هلمند په شمالي ولسواليو کې جهادي عمليات پيل شوي وو، خو په جنوبي ولسواليو لکه هزارجفت ،ناوه ،نادعلي او نورو سيمو کې لا د جهادي عملياتو څرک نه لګيده ،موږ په سيمه کې وګرځيدو او خلکو ته مو د جهاد دعوت کاوو ،مولوي عبدالحکيم صاحب څه موده وروسته پاکستان ته لاړ او دمولوي محمدنبي محمدي صاحب سره يې وليدل، دنوموړي لخوا په همدې سيمه کې د جهادي چارو د مشر په حيث وټاکل شواو ځيني تبليغاتي پاڼې چې دجهاد دعوت په کې وو له ځان سره يې راوړې ،دغه وخت موږ د خلکو په مرسته يوڅه پيسې برابرې کړې، څرنګه چې موږ دجهاد لپاره هيڅ وسله نه درلوده ، مولوي عبدالحکيم صاحب قبايلي سيمې تيرا ته لاړ او شپږ ميله کچه وسله ، درې توپک او درې تفنګچې يې راوړې ،له دې وروسته مو له عامو خلکو هم وغوښتل چې ورسره وسلې راوباسي په دې ډول ۳۵ کسان مجاهدين تيار شوو، ترڅو د هزارجفت په سيمه کې د کمونيستي رژيم په خلاف لومړني عمليات پيل کړو.

څرنګه چې مجاهدينو په مسکوني سيمو کې د قرارګاه ځای نه درلود، نو دوی لومړی په چوټو نومي غرنۍ سيمه کې يو پټ مرکز جوړ کړ ،دغه راز يې دوه آهو موټر هم پيدا کړل تر څو له عملياتو وروسته له سيمې څخه ځان وباسي او مرکز ته ځان ورسوي ،د ۱۳۵۹ هـ ش کال د اوړي تر وروستيو پورې د مولوي عبدالحکيم صاحب په هڅو په دې سيمه کې دجهادي جبهې کار پای ته ورسيد او مجاهدين عملياتو ته اماده شول ترڅو يې د همدې کال په مني کې دلکرۍ په سيمه کې په حکومتي قرارګاه لومړني عمليات ترسره کړل .

د لکرۍ د قرارګاه له فتحې وروسته هزارجفت ته دهلمند له شمالي ولسواليو څخه هم ګڼ شمير مجاهدين راغلل او مجاهدينو په ګډه د هلمند په جنوبي ولسواليو کې ددشمن په مراکزو بريدونو پيل کړل تردې چې د شپږو مياشتو په امتداد کې د ګرمسير ، ناوې او نادعلي درې واړه ولسوالۍ مکملې فتحه شوې او دغه سيمې دمجاهدينو تر کنترول لاندې راغلې.

خو څه موده وروسته روسي يرغلګرو له داخلي کمونيستانو سره په ګډه د همدې ولسواليو د مراکزو دنيولو لپاره ستر عمليات وکړل ،چې په نتيجه کې يې دولسواليو مراکز بيرته کمونيستي حکومت ونيول خو اطراف په مکمله توګه د مجاهدينو تر واک لاندې و.

مولوي عبدالحکيم صاحب چې په همدې سيمه کې دمجاهدينو يو مخکښ امير و د ګرمسير په ولسوالۍ کې يې قرارګاه درلوده او تر مشرۍ لاندې مجاهدينو يې په ګرمسير ،ناوه، نادعلي، ګرشک او حتی د لښکرګاه په مربوطاتو کې عمليات کول، دغه راز که به دې سيمو ته د روسانو او داخلي کمونيستانو قواوې راغلې دوی له نورو مجاهدينو سره په ګډه ورباندې عمليات ترسره کول چې همدغه بهير د کمونيستي رژيم د سقوط تر وخته جاري و.

**په اسلامي امارت کې خدمتونه**

ملا عبدالمحمد جان چې دمولوي عبدالحکيم صاحب له نږدې جهادي ملګرو څخه دی وايي : کله چې دطالبانو اسلامي تحريک په کندهار کې ظهور وکړ ، امير صاحب /مولوي عبدالحکيم صاحب موږ له هزارجفت څخه کندهار ته وليږلو تر څو له طالبانو سره ووينو او خپل د يووالي پيغام ورته ورسوو ،دغه وخت کندهار تصفيه

شوی و او طالبان د هلمند په خوا روان و،د هلمند په ګرشک کې موږ د اسلامي تحریک له مشر ملامحمد عمر مجاهد سره ولیدل او د مولوي عبدالحکیم صاحب خبره مو ورته ورسوله،دغه وخت ملا صاحب یو هیئت هزارجفت ته ولیږلو او ورته ویې ویل چې که محلي قومندانان مو خلع سلاح کول د مولوي عبدالحکیم صاحب له ملګرو وسلې مه اخلئ ځکه دوی له تحریک سره پیوستون کړی دی، دطالبانو هغه هیئت هزارجفت ته راغی او دغه ولسوالي پرته له مقاومت او جنجاله د طالبانو تر واک لاندې راغله، دغه وخت مولوي عبدالحکیم صاحب د خپلې جبهې وسلې او مهمات چې د نجیب له سقوط وروسته یې په ځمکه کې ښخ کړي او ذخیره کړي و را وایستل او ټول یې دطالبانو اسلامي تحریک ته وسپارل .

مولوي عبدالحکیم صاحب له دې وروسته تر ډیره وخته پورې په هزارجفت ولسوالۍ کې د ولسوال د معاون په حیث دنده اجراء کوله ، کله چې په کابل باندې طالبانو فاتحانه برید پیل کړ دغه وخت نوموړی له خپلو ملګرو سره د عالیقدر امیرالمؤمنین لخوا



وغوښتل شو او دلوګر ولایت د والي په حیث تعین شو.

د جلال اباد له فتحې وروسته چې دلوګر پخواني والي مولوي عبدالکبیر صاحب جلال اباد ته لاړ د لوګر ولایت چارې مولوي عبدالحکیم صاحب په غاړه واخیستې.

کله چې دشمالي په جګړو کې د پروان ولایت والي قاري صاحب جلالزی په شهادت ورسید مولوي عبدالحکیم صاحب د پروان د والي په حیث مقرر شو،دغه وخت د مولوي صاحب نظامي ملګرو د پروان دپل متک سیمې د بیانانو په جنګي خط کې دنده ترسره کوله،په شمال کې له تحولاتو وروسته چې طالبان له پروان ولایت څخه هم ووتل او جنګي کرښه قره باغ ته راپه شا شوه،مولوي عبدالحکیم صاحب څه موده د کابل د سروبي ولسوالۍ د ولسوال په حیث دنده اجراء کړه او وروسته د میدان وردګو ولایت والي وټاکل شو.

یو کال وروسته کله چې د بامیانو دنیولو لپاره له څو طرفه عملیات پیل شول،مولوی صاحب هم په کې برخوال و چې د بهسودو لخوا یې د بامیان په خوا طالبان رهبري کول، د بامیان له فتحې وروسته نوموړی د امارت د مشرتابه لخوا د سمنګانو د والي په حیث وټاکل شو،په سمنګانو کې د ولایتي دندې سره په څنګ کې یې د دره صوف په سیمه کې د حزب وحدت د باغیانو په وړاندې په عملیاتو کې هم برخه اخیسته،په سمنګان کې له یو کال خدمت وروسته نوموړی د امارت د مشرتابه لخوا د روزګان ولایت د والي په حیث مقرر شو چې د امریکایي یرغل تر مهاله دهمدې ولایت د والي په حیث پاته و.

### امریکایي یرغل او په وړاندې یې جهاد

تر امریکایي یرغل وړاندې په روزګان ولایت کې د جان محمدخان په نامه یوه پخواني ټوپکمار پټه فعالیت پیل کړی و،چې نوموړي د طالبانو لخوا ونیول شو او په کندهار کې زندان ته ولیږل شو، کله چې امریکایانو په افغانستان یرغل پیل کړ، دغه

مهال حامد کرزی د امریکا د یوه پټ پلان له مخې ځان روزګان ته ورساوو او ددې ولایت په غرنیو سیمو کې یې د اسلامي امارت په خلاف فعالیت پیل کړ .

ملا حبیب الرحمن رحماني چې د مولوي عبدالحکیم صاحب له نږدې ملګرو دی وایي کله چې مولوي صاحب ته خبر ورسید چې د روزګان د مرکز مربوط د چینارک او پشتې په غرونو کې د حامد کرزي په مشرۍ وسلوالو کسان فعالیت پیل کړی دی، نو همدې سیمې ته یې د طالبانو تشکیل وکړ، ډیر وخت په غرونو کې وګرځیدل ، ترڅو یې د حامد کرزي ځای معلوم کړ او حمله یې وربادنې وکړه، په دې وخت حامد کرزي ته امریکایي څرخکو په سلهاوو میله کلاشینکوفونه ښکته کړي و، چې له یو څه جنګ وروسته حامد کرزی وتښتید چې وروسته امریکایي څرخکو پورته کړ او سلګونه میله وسله یې طالبانو غنیمت ونیوله.

وروسته چې کله طالبانو د افغانستان له لویو ښارونو او ولایتي مرکزونو شاتګ پیل کړ،په روزګان کې هم ولسوالۍ او د مرکز ډیرې سیمې د امریکایانو په مرسته حامد کرزی ونیولې.

ملا حبیب الرحمن رحماني وایي : هغه مهال سره له دې چې ډیر امتحاني وخت و او امریکایانو هرځای مقاومت په ډیره بې رحمۍ بمباراوو، مګر مولوي صاحب عبدالحکیم تر پایه د ولایت د مرکز په یوه مربوطه سیمه کې پاته و، ملګرو یې ورته ویل چې باید له دې ځایه ووځي ځکه خطر به ورته متوجه شي خو نوموړي ویل : که تاسو ځئ لاړ شئ خو زه چې همدا اوس بمبار کیږي او دامریکا ټول بمونه راباندې غورځي هم تر هغو نه ځم چې د ملاصاحب امر نه وي. رحماني وایي نوموړی تر هغه وخته له خپلو ملګرو سره همالته و ترڅو له کندهار څخه هم دامارت مشران ووتل.

مولوي عبدالحکیم صاحب وروسته د امریکا خلاف جهاد کې هم د خپلو مجاهدینو د مشر لارښود په حیث ستر رول درلود، د نوموړي تر رهبرۍ لاندې د امریکا په خلاف جهاد کې یوه لویه جهادي فعاله وه لکه څنګه چې د شوروي خلاف جهاد کې یې د پام وړ ونډه اخیستې وه.

**وفات او وروستي یادونه**

د مولوي عبدالحکیم صاحب ورور مولوي عبدالرازق صاحب وایي چې نوموړي د جهاد غوندې له علم سره هم ځانګړې مینه درلوده،چې په دې لړ کې یې دهلمند په هزارجفت،ماجتک او د هجرت په کمپ پنجپای کې مجموعا څلور مدرسې تاسیس کړي دي،نوموړي په جهادي ژوند کې هم همیشه له علم ، کتاب او تدریس سره رابطه درلوده ، او له جهاد سره د علاقې ثبوت یې دادی چې د ژوند ډیره برخه یې په جهاد کې تیره کړه، نه یوازې خپله بلکې ورونه او وریرونه یې هم په جهادي فکر وروزل چې په دې لړ کې یې دوه وریرونه شهید ملا نورالله نوراني دامارت دواکمنۍ په مهال په شمالي کي او شهید ملا عبدالنافع د امریکایانو په خلاف جهاد کې د غزني ولایت په مقر ولسوالي کې په شهادت ورسیدل .

ملا عبدالمحمد وایي : مولوي عبدالحکیم صاحب نهایت متقي او له بیت المال سره احتیاط کوونکی و، سره له دې چې مشر و مګر هیڅکله یې دامارت پیسې په خپله نه مصرفولې ، د پیسو لپاره به یې همیشه مالي ټاکلی و او له هغه څخه به یې د یوه فرد په هیڅ د ضرورت وړ خرڅ اخیست.

مولوي عبدالحکیم صاحب له اوږده متعهدانه ژوند نه وروسته د ۲۰۱۴ میلادي کال د می میاشتې په ۸ نیټه په حق ورسید.

**انالله و اناالیه راجعون . روح دې ښاد او یاد دې تل وي**

# هلمندیان:

## ملي اردو د ذوالفقار په عملیاتو کې

## بشپړ کلي له منځه وړي

دافغانستان

په سویلي ولایت هلمند کې د ذوالفقار په نوم عملیاتو کې تر ټولو زیات زیان ولسي خلکو ته رسیدلی.

دغه عملیات د قومندان لونګ په مشرۍ د ۷۰۰۰ ملي اردو عسکرو له لوري له تېرو دوو اوونیو را پدېخوا د هلمند په نادعلي، مارجه او سنګین ولسوالیو کې پیل شوي دي، چې په ترڅ کې سلګونو کورنیو ته ګڼ مالي او ځاني زیانونه اوښتي دي. د سنګین ولسوالۍ یو تن اوسېدونکي د نوم نه ښودلو له کبله ژمن خبري او تحلیلي وېبپاڼې ته د تیلفون په کرښه وویل چې:

»په سنګین ولسوالۍ کې له تېرو دوو اوونیو را په دې د ملي اردو له لوري سخت عملیات پیل شوي چې له امله یې پلونه، پلچکونه او لویې لارې ویجاړې شوي دي، ملي اردو د ډېرو عامو او بې ګناه خلکو کورونه وران او شمتنۍ یې چور کړې، ډېر خلك له دغه ځایه کډه کولو ته مجبور شول. « دغه تن په خپلو خبرو کې زیاته کړه چې، د ذوالفقار په نوم عملیاتو کې زیات زیانونه د سیمې اوسېدونکو ته رسېدلي دي او د افغان ملي اردو له لوري بشپړ کلي له منځه تللي دي.

نوموړي وویل چې په لویو لارو کې ځای پر ځای ماینونه خښ شوي دي او د ملي اردو لوی لوی پوځي موټرونه د خلکو پر کورونو او فصلونو ورخیژي، ده وویل چې ملي اردو عسکرو په لسګونو کورونه ویجاړ کړي دي.

همدارنګه د نادعلي د شاول او باباجي سیمو اوسېدونکو وایي چې د ملي اردو عسکرو دوی ته ویلي چې ستاسو باغونه ځکه ورانوو چې له دغې سیمې وسله وال پر موږ بریدونه کوي او تاسو طالبانو ته په کورونو کې ځایونه ورکوئ.

د مارجې د تریخ ناور سیمې اوسېدونکي وايي چې له څو اوونیو را پدېخوا د ملي اردو عسکرو له لوري ورسره سخت زیاتی کېږي، دوی یې له خپلو کورونو شړلي او دغلته یې سنګرونه جوړ کړي دي.

د ځینو راپورونه له مخې د دغو عملیاتو له امله د کجکي د برېښنا د فابریکې کارونه هم په ټپه درېدلي. همدارنګه د ملي اردو عسکرو په مالمند بازار کې دوه سوه دوکانونو او د موټرو یو بارګین ته چې لسګونه موټر پکې ولاړ و، اور ورته کړی. د مارجې د تریخ ناور سیمې اوسېدونکي وایي چې سره له دومره ورانیو او ویجاړیو اوس هم ډېره سیمه د طالبانو تر واك لاندې ده.

دوی وایي چې د ذوالفقار په عملیاتو کې په لسګونو بې ګناه خلکو ته مرګ- ژوبله هم اوښتې ده.

همدارنګه په دغو عملیاتو کې دواړه لوري یو بل ته د درنو تلفاتو خبرونه ورکوي.

د هلمند امنیه قوماندان نبي جان ملاخیل ویلي په ذوالفقار عملیاتو کې یې تر اوسه پورې له سلو ډېر وسله وال طالبان وژلي دي، خو بلخوا بیا د طالبانو ویاند دغه خبرونه ردوي او وایي چې د دوی کسانو ته هېڅ مالي او ځاني زیان نه دی اوښتی، بلکې طالبانو د ملي اردو په لسګونه تنه عسکر وژلي دي او ګڼې سیمې یې هم تر واك لاندې راوستي دي.

# مالیزیا؛

## الگوی کشورهای اسلامی

خلیل اکبر

مالیزیا با حکومتی مشروطه سلطنتی در قلب ناحیه شرق آسیا در نزدیکی خط استوا واقع شده است؛ پایتختش کوالالامپور می‌باشد.

این کشور از دو ناحیه؛ ناحیه‌ی شرقی، که بخش شمالی جزیره بورنئو می‌باشد با اندونزیا مرز مشترک داشته و تحت حکومت سلطان نشین برونئی قرار دارد و ناحیه غربی (شبه جزیره‌ی مالیزیا) که شامل ۱۱ ایالت بوده و پایتخت (کوالالامپور) نیز در این ناحیه قرار دارد، تشکیل می‌شود.

کشور مالیزیا یکی از مجهزترین ساختارهای زیربنایی و امکانات معیشتی در بالاترین رده‌ی استانداردهای زندگی در آسیا را به خود اختصاص داده است. پایتخت مالیزیا "کوالالامپور" علاوه بر اینکه در لیست ۱۰ شهر مدرن جهان قرار دارد، یکی از ارزانترین پایتخت‌های جهان محسوب می‌شود. این شهر سه تا از ۲۵ ساختمان بلند دنیا را که شامل برج‌های ۴۵۲ متری دوقلوی پتروناس و برج ۴۲۰ متری منار ای می‌باشد، در خود جای داده است.

مالیزیا این الگوی کشورهای اسلامی در عرض ۵ دهه توانست خود را از زمره‌ی کشورهای عقب‌مانده‌ی اقتصادی خارج نموده و مسیر توسعه‌ی اقتصادی ـ اجتماعی را به سرعت طی نماید، این کشور توانست از میان فقیرترین کشورهای آسیایی به یکی از کشورهای تازه صنعتی شده (new nice) تبدیل شود.

برنامه توسعه چشم انداز مالیزیا استراتژی و سیاست توسعه این کشور را در دراز مدت تعیین و براساس قالب و چارچوب اقتصاد کلان و اهداف بلند مدت ارائه می‌دهد. چارچوب اقتصاد کلان نیز با سیاست‌ها و استراتژی‌های بخش‌های مختلف همراه است که به توسعه‌ی بخش اقتصادی و اجتماعی از جمله زیرساخت‌ها، صنعت، خدمات عمومی، انرژی و کشاورزی جهت می‌دهد.

سابقه‌ی برنامه‌ریزی در کشور مالیزیا به سال ۱۹۵۰ باز می‌گردد که بعد ۱۱ سال واحد برنامه‌ریزی اقتصادی در سال ۱۹۶۱ در دفتر نخست وزیری تشکیل شد تا نظارت بر برنامه‌ریزی توسعه با جدیت بیشتر و بهتری پیگیری شود.

مالیزیا پیشرفت چشم‌گیر خود را مدیون مهاتیر محمد است که در سال ۱۹۸۱ نخست وزیر مالیزیا شد و عملاً با اصلاحات زیربنایی توسعه و پیشرفت مالیزیا کلید خورد. او توانست با اندیشه‌ای منسجم و مبتنی بر آزادی‌های اقتصادی کشوری را که گذشته مستعمره امپراتوری انگلیس بود و فقر و اختلاف نژادی توأم با تبعیض طبقاتی به اوج خود رسیده بود، با کمال شگفتی به سمت توسعه با شاخص‌های بالای پشرفت و ترقی هدایت کند.

مهاتیر محمد راه اصلی پایان دادن به اختلافات نژادی و فاصله‌ی طبقاتی را عدالت می‌دانست و بر این اساس کارگروه‌ها و ائتلاف‌های بزرگی تشکیل داد و طی نشست‌هایی علل و ریشه‌ی این

اختلافات را توزیع نابرابر ثروت بین مردم دانست و از همه خواست تا برای کاهش این فاصله و تقسیم ثروت به طور منصفانه، تلاش کنند.

او همچنین در رابطه با کاهش طبقاتی به بررسی و نقد سیاست صدقه دادن پرداخته و عقیده داشت: گرچه صدقه گیرندگان ممکن است خشنود شوند، اما این روش دوام نداشته و صدقه گیرندگان از ایجاد ثروت باز خواهند ماند و این عمل با روح اسلام منافات دارد. او عقیده داشت مسلمان باید قوی باشد و بر کسی غیر از خدا اتکا نکند. به نظر او بهترین کار سرمایه گذاری در صنعت است که ثروت و مهارت خلق می کند.

او می گوید: گفته می‌شود که اسلام مانع نوسازی و مدرنیزاسیون کشور است. این مطلقاً واقعیت ندارد. زمانی که اعراب جاهلی اسلام را پذیرفتند، ملتی بزرگ شدند که تمدن اسلامی را ساختند؛ تمدنی که برای قرن‌ها بر تمدن اروپایی برتری داشت. اگر امروزه به نظر می‌رسد که اسلام مانع توسعه مدرن است دلیل آن تفسیرهای متفاوتی است که ما از اسلام داریم.

مهاتیر محمد با طرح برنامه‌ای جامع و دراز مدت مسیر توسعه‌ی مالیزیا را مشخص کرد و به جای طرح شعارهای کلی و غیر عملی این برنامه را دقیقاً به اجرا گذاشت. وی با برنامه‌ریزی و سنجش شرایط دورنمایی برای مالیزیا مشخص نمود تا بر این مبنا این کشور تا سال ۲۰۲۰ به یک کشور کاملاً صنعتی و توسعه یافته تبدیل شود.

**اقتصاد:**

مالیزیا تا پیش از سال ۱۹۷۰ کشوری فقیر محسوب می‌شد و بیش از ۴۹٪ مردم در فقر مطلق به سر می‌بردند این کشور در آن زمان به طور عمده مواد خام کشاورزی شامل: قلع، نفت، کائوچو و روغن تولید می کرد. درآمد سالانه‌ی مالیزیا در زمان استقلال حدود ۲۵۰ دلار و سهم تولیدات صنعتی در صادراتش ناچیز و در حد ۱۳٪ بود. مالیزیا طی سه دهه‌ی اخیر به گونه‌ای شتابان صنعتی شد و از کشوری که به تولید طیف وسیعی از مواد خام معدنی و تولیدات کشاورزی صنعتی (روی، لاستیک طبیعی، مواد و چوب های استوایی و برخی مواد کانی و تولیدات کشاورزی) متکی بود؛ به کشوری تبدیل شد که صنایع تولیدی نقش مهمی را در اقتصاد ایفا می‌نماید.

مالیزیا در رتبه بندی شاخص آزادی اقتصادی در سال ۲۰۰۷، با کسب ۸۵ امتیاز در رتبه ۴۸ قرار گرفت و در سال ۲۰۱۲ با سی پله صعود در رتبه ۱۸ قرار گرفت و همچنین از نظر توسعه، رتبه‌ی اول کشورهای اسلامی و رتبه‌ی ۱۷ جهان را دارا می‌باشد. مالیزیا در سال ۲۰۱۳ مقام بیستمین صادرکننده و بیست و یکمین وارد کننده‌ی جهان را به خود اختصاص داده است. به گزارش روزنامه "نیو استریت تایمز" در سال ۲۰۱۴ فقط صادرات روغن پالم در مالیزیا ۱۷ میلیون و ۲۷۰ هزار تن با ارزش اقتصادی ۱۲ میلیارد و ۵۰۰ میلیون دلار بوده است.

رشد اقتصادی مالیزیا در طی دو دهه اخیر به طور متوسط ۸ درصد بوده که بعد از چین از این حیث مقام دوم را دارد.

مالیزیا سالانه حدود ۲۴ میلیارد دلار به سبب خصوصی سازی پس انداز می‌کند. این پس‌اندازها در اثر افزایش مالیات یا کند شدن توسعه کشور پدید نمی‌آید، بلکه حاصل خصوصی سازی ۱۲۰ نوع فعالیت دولتی در دوره‌ی پس از ۱۹۸۲ است. تجربه مالیزیا به اثبات رسانده که خصوصی سازی مؤثر است. دولت مالیزیا بیش از دو میلیارد دلار در سال از بابت پرداخت حقوق ها و مستمری صرفه جویی داشته است.

**روش های خصوصی‌سازی در مالیزیا:**

۱ -واگذاری سهام دولتی به بخش خصوصی شامل: انتقال سرمایه، نیروی انسانی و مدیریت می‌باشد.

۲ -فروش سرمایه؛

۳ -اجاره اموال دولتی؛ به اجاره کننده اجازه داده می‌شود برای موارد مشخص

با اجازه‌ی معین، از اموال دولتی برای مدت زمان محدود بهره‌برداری نماید.

**سرمایه‌گذاری خارجی در مالیزیا:**

مالیزیا در دو دهه‌ی گذشته بالاترین نرخ جذب سرمایه‌گذاری سرمایه‌گذاران خارجی را نسبت به دیگر کشورهای منطقه از آن خود کرده است. سرمایه‌گذاران خارجی مهم‌ترین عامل محرک اقتصادی مالیزیا هستند. اکنون بیش از سه هزار شرکت خارجی از ۴۳ کشور دنیا در مالیزیا فعالیت می‌کنند.

**دیانت و نگرش مذهبی:**

مالیزیا یک جامعه چند دینی است که کثرت دین‌ها و تفکرات اعتقادی به وضوح در این کشور نمایان است؛ اما اسلام دین رسمی این کشور می‌باشد و اکثریت مردم این کشور مسلمان هستند. سابقه‌ی ورود اسلام به منطقه جنوب شرق آسیا به قرن هفتم میلادی باز می‌گردد که این کشور نه از طریق فتوحات، بلکه از طریق تجارت، مهاجرت و ارتباطات مسالمت‌آمیز مسلمان شده است. اسلام در طول پانصد سال گذشته قسمت مهمی از فرهنگ مالایو را تشکیل می‌دهد.

اسلام همیشه به عنوان عنصر کلیدی نقش مهمی در وحدت و نزدیکی بین افراد در مالیزیا ایفا کرده است و مسلمانان این کشور به عنوان انسان‌های صادق، صلح طلب و خوش اخلاق جایگاه ویژه‌ای دارند.

نماز جمعه و جماعت در همه‌ی مساجد باشکوه و زیبای مالیزیا که سبک و روش خاصی در معماری اسلامی دارد، برگزار می‌شود. شورای ملی امور اسلامی، متشکل از نمایندگان پادشاه که معمولاً تحت ریاست نخست وزیر می‌باشد، هماهنگی امور مذهبی را در زمینه‌های مختلف بر عهده دارند که کمیته‌ی فتوا یکی از ارگان‌های وابسته به آن است.

اهمیت دادن به معلومات و اطلاع داشتن از اسلام، ارزش کار سخت، صداقت، عدالت، صبر، مدیریت کارآمد، ایمان و تقوا از مشخصه‌های بارز اسلام حضاری و پیشرفته (civilizational islam) در مالیزیا می‌باشد. طبق تحقیقات به دست آمده مالیزیا از لحاظ تطبیق مؤلفه‌های اسلامی در میان کشورهای اسلامی مقام اول را دارا می‌باشد.

دومین مرکز بزرگ جهانی چاپ قرآن کریم در کشور مالیزیا است. به عنوان مثال فقط مؤسسه (رستو) به عنوان یکی از مؤسسات قرآنی مالیزیا در سال ۲۰۱۳ اقدام به چاپ یک میلیون نسخه قرآن کریم همراه با ترجمه به چند زبان دنیا و توزیع در داخل و خارج از مالیزیا نموده است.

در حالی که جمعیت مالیزیا کمتر از ۲۹ میلیون می‌باشد؛ طبق آمار وزارت توریسم و گردشگری مالیزیا در سال ۲۰۱۴ این کشور پذیرای بیش از ۴۰ میلیون گردشگر بوده است. این آمار مالیزیا را در ردیف کشورهایی قرار می‌دهد که تعداد توریست از جمعیت‌شان بیشتر می‌باشد.

صنعت توریسم در مالیزیا رونق فراوانی داشته و سالانه میلیون‌ها توریست از مالیزیا دیدن می‌کنند. بر مبنای این آمارها توریست با عایدی معادل ۳۹ میلیارد دلار در سال یکی از ۶ منبع اصلی مالی دولت محسوب می‌شود؛ که ۱۲٪ درآمد ناخالص ملی و همچنین ۱۴٪ از فرصت‌های شغلی را تأمین می‌کند.



# د هلمند عملیات

حبیب مجاهد

# که د ناکامو تجربو تکرار

د ۲۰۱۵ م کال د فبروری میاشتې له پنځلسمې را هیسې دکابل رژیم د ځواکونو او دهغوی د بهرنیو ملاتړو لخوا د هلمند ولایت په ځینو سیموکې پراخ پوځي عملیات پیل شوي دي .

دغه عملیات چې ذوالفقار نوم ورکړل شوی دی، په رسنیوکې ورته پراخ خو مبالغه امیزکمپاین روان دی ، ترڅو یي له خیالي برياوو څخه د رژیم د شړیدلي آبرو د جبیرې په حیث کار واخلي .

د هلمند نوي عملیات دګرشک له میرمنداو سیمې نه پیل شول دغلته ګڼ شمیر خارجي او داخلي عسکر له چورلکو پیاده شول خو مجاهدینو وربانديې له هرې خوا بریدونه پیل کړل، په دې سیمه کې که څه هم بهرنیانو له ظالمانه بمبار څخه کار واخیست خو له دوه ورځې مقاومت وروسته خارجي او داخلي عسکر بیرته مجبور شول چې د درنو تلفاتو له زغملو وروسته د چورلکو په واسطه له سیمې وتښتي ،د میرامنداو له ناکامۍ وروسته یي دګرشک د قلعه ګز په سیمه کې عسکر پیاده کړل دلته هم دمجاهدینو بریدونو دښمن په تیښته مجبور کړامریکایانو دتیښتې په مهال څو تنه ملکي وګړي په شهادت ورسول او بیا له سیمې وتښتیدل له دې سره هم مهال امریکایان او داخلي کوماندوو عسکر د سنګین د مالمند بازار په سیمه کې له چورلکو پیاده شول دلته هم ورسره ټینګ جنګ وشو، دوه امریکایان ټپیان او یو ووژل شو،دغه راز داخلي عسکرو ته هم درونډ زیان واوښت له دې مړګ ژوبلې وروسته هغوی بمبار وکړ، چور او چپاول یې وکړ، د عامو خلکو دوه سوه دوکانونه یې وسوځول، او د حاجي باچا اغا په نوم د یو سوداګر بارګین یا د موټرو د خرڅلاو شوروم یې په مکمله توګه وسوځاوه، باید وویل شي چې مالمند بازار د سنګین په صحرایي سیمه کې وروسته له هغه د سنګین د اوسیدونکو لخوا جوړ شوکله چې د تیرو څوکلونو په جګړوکې ولسي خلک له خپلو اصلي میشت سیمو وکوچیدل او په دښتي سیموکې ژوند ته مجبور شول چې بیا یې همدلته یو ښارګوټی ودان کړ، خو د هلمند په نویو عملیاتوکې د داخلي او خارجي عسکرو یوازینۍ د پاموړ کارنامه دا بلل کیږي چې دغه بازار یې وسوزاوو او دخلکو تجاري مالونو ، موټرو او ملکیتونو ته یې درونډ زیان واړاوو.

د غلچکي چاپو او عسکرو پیاده کولو د چال له ناکامۍ وروسته ددښمن قواوو د هلمند په ځینو سیموکې ځمکنۍ تهاجمي عملیات پیل کړل ،دوی په پنځو ځایونو باباجي، مارجه، سنګین، نوزاد او واشیر ولسوالیوکې یو شمیر قواوې د مجاهدینو د واک سیمو ته داخلې کړې چې د مجاهدینو له سخت عکس العمل سره مخامخ شول .

په واشیر او نوزاد ولسوالیوکې څرنګه چې ددښمن تهاجم کمزوری و ، په لومړیوکې له شکست سره مخامخ شو ، ددښمن قواوې چې د هرات دظفر قول اردو اړوند ځواکونه په کې و بیرته وتښتیدل او په دې ونه توانیدل چې دمجاهدینو د واک په

سیمه کې جګړې او عملیاتو ته دوام ورکړي .

د لښکرګاه مربوط د باباجي په سیمه کې چې ددښمن لویه قوه د مجاهدینو سیمې ته داخله شوې وه دری ورځې په سختو جګړو کې ښکیل وه ، د دښمن ځواکونه که څه هم دامریکایي ځواکونو بشپړ هوایي ملاتړ ورسره و او بیرحمانه بمبار یې کاوو ، د مجاهدینو د مسلسلو بریدونو په پایله کې په دریمه ورځ په بشپړه توګه مات او په تیښته مجبور شول ، له باباجي نه وروستي معلومات وایي چې له دې سیمې ددښمن عملیاتي ځواکونه تښتیدلي خو ترشا یې د سوزیدلیو موټرو او ټانګونو اسکلیټونه پاته دي چې ددښمن په عبرتناک شکست ګواهي ورکوي .

همدا اوس چې د هلمند د عملیاتو له پیل څخه نږدې شل ورځې تیریدونکي دي یوازې د سنګین ولسوالۍ د شکرشیلې په سیمه اود مارجې په تریخ ناور سیمه کې ددښمن عملیات روان دي په نورو محاذونو کې له شکست وروسته دښمن دې دوو محاذونو ته خپل قوت راټول کړی دی ، او په سخت ظلم یې لاس پورې کړې دی ترڅو د وریښو رسواییو غچ د هلمند له عامو اوسیدونکو څخه واخلي .

د سنګین اوسیدونکي وایي چې داخلي ګوډاګیانو په دې سیمه کې دامریکایانو هغه ظالمانه تګلاره عملي کړې چې امریکایانو دکندهار په خو ولسوالیو کې پلې کړه چې په ترڅ کې یې د ولسي وګړو زرګونه جریبه حاصلخیزې ځمکې، کورونه او ودانۍ ویجاړې او له منځه یووړل شوې .

د دښمن عسکرو په دې بهانه چې د سرک له یوې او بلې غاړې وربانديې برید ونشي په سنګین ولسوالۍ کې دتیر شوي عام سرک په دواړو خواوو کې د خلکو دکورونو، دوکاونونو ، باغونو او کښتونو په نړولو پیل کړی دی، او تراوسه یې ولسي تاسیساتو ته بې اندازې زیانونه اړولي دي.

له پوځي اړخه د هلمند عملیات په بشپړه توګه دشمن ته به زیان تمام شوي دي،ددې عملیاتو په لړکې دښمن هیڅ د پام وړ لاسته راوړنه نه ده درلودلې نه یې کومه سیمه نیولې او نه یې هم مجاهدینو ته کوم د پام وړ زیان اړولی دی ، په سنګین چې دښمن ټول زور ازمویلی تراوسه یې دمجاهدینو په سیمه کې پرمختګ نه دی کړی ، لا هم جګړه د سنګین د مرکز په نیم کیلومترۍ کې جریان لري چې پخوا هم همدلته د مجاهدینو کمربند موجود و.

د مارجې ولسوالۍ په تریخ ناور کې دښمن له په ټپه ولاړ حالت سره مخامخ دی ، هره ورځ وربانديې درانه بریدونه کیږي او وسایط یې په ماینونو الوځي، خو په مقابل کې کومه د پامور لاسته راوړنه نلري، دښمن لکه څنګه چې د سیمې په نیولو نه دی توانیدلی مجاهدینو ته یې کوم د پام وړ زیان هم نه دی اړولی ، دهلمند ولایت جهادي مسؤل ملا عبدالمنان اخند وایي چې د څو هفتو د عملیاتو په لړکې د مجاهدینو د مرګ ژوبلې مجموعې شمیر تر دیرشو رسیږي چې دا په دومره پراخه جګړه کې لږ رقم دی .

خو بالمقابل دښمن ته خورا درانه زیانونه رسیدلي دي، وړمه ورځ چې په سنګین ولسوالۍ کې د داخلي عسکرو په تجمع د موټر فدایي برید ترسره شو لسګونه داخلي ګوډاګیان په کې په یوه ځای مړه او ټپیان شول .

د هلمند ولایت مجاهدین وایي چې په دغه ولایت کې پیل شوي وروستي عملیات چې نړیوال یرغلګر یې دداخلي اردو آزموینه بولي ، پخوانیو عملیاتو او تهاجمونو ته په پام سره ډیرکمزوري او بې اغیزې دي، چې تراوسه هیڅ لاسته راوړنه نلري، هلمند ولایت په تیره لسیزه کې د ترټولو سختو جګړو شاهد پاته شوی دی ، په دې ولایت کې د امریکا ، برتانیې او ګڼو نورو هیوادونو په شمول بیلابیلو پوځیانو خپلې جنګي ستراتیژۍ او طرحې وازمویلې ، خو هیڅکله یې هم د بري مخ ونه لید، همدې لس کلن جریان ته په پام سره کتونکي د هلمند نوي عملیات هم یوازې د زړو ناکامو تجربو تکرار بولي، چې پرته له شکست به بله هیڅ نتیجه ونلري .



# اهل سنت والجماعت

## اشاعره او ماتریدیه

مفتي شاهد (حقاني)

مولینا ډاکتر خالد محمود په خپله هغه شهکاره علمي او نایابه مقدمه کې ،چې په (المهند علی المفند) یا (عقاید علماء اهل سنت دیوبند ) په نوم تصنیف باندې یې لیکلې ، چې دې علمي کتاب کې دحرمینوشریفینو دعلماوود(۲۶)شپږویشتوپوښتنو مدلل ځوابونه ،دلوی نامتو محدث حضرت مولینا خلیل احمد سهارنپوري رح لخوا ورکړل شوي او بیا دهندوستان مشایخو رح په عمومي صورت تایید او تصدیق کړي، داسې لیکي : چې په نوې یا اوسنی اصطلاح د (اهل حدیثو)مقتدر عالم (مولینا محمد ابراهیم میرسیالکوټي )لیکي :چې متکلمین حضرات هم اهل سنت دي ،دالیکي چې خلاصه داچې ،په اصول عقاید کې درې مسلکه قرار لري ،۱ـ حنبلي ۲ـ اشعري ۳ـ ماتریدی ؛اودوئ پدې لاندنیوفروعي مذاهبوکې هم شامل دي ،په حنابله ووکې حنبلي مقلدین او پخواني اهل حدیث ،اشاعره ووکې مالیکان او شافعیان او ماتریدیه ووکې احناف (تاریخ اهلحدیث ص۱۱۷).

ډاکتر خالدمحمود رح وروسته داسې لیکي :چې داضروري نده، چې ټول احناف دې ضرور( ماتریدیه) وي ،وګورئ (قاضي ابوالحسن بن ابی جعفر سمناني) اودده پلارپه فروعي مسایلو کې حنفیان اوپه اصول دین کې اشعري وو،اودا بیا دې لاره کې غالي درجه کې هم و،مشهور مورخ (ابن اثیر جزري ۴۶۶هـ)په واقعات کې دا دواړه حنفي اشعري باندې ملقب کوي ،لکه چې لیکي ((هذا ما یستطرف ان یکون حنفی اشعریا)) /تاریخ کامل ج۲ص۳۲)،داخبره هم دیادولو وړ ده، چې نه یوازې دا چې خلک دوئ ته اهل سنت والجماعت وایې، بلکې دوئ (امام ابو الحسن اشعري رح او امام ابومنصور ما تریدي رح ) پخپله هم همیشه ځانته اهل سنت والجماعت ویلی، لکه دصفاتو مسئله کې چې امام ماتریدي رح وایې :(صفات الله لا هی هو ولا غیره عند اهل السنة والجماعة ولا هی محدثة سواء کانت من صفات الذات او من صفات الفعل /شرح فقه ص۱۲۱الماتریدی ) .

همداسې زمونږددیني مدرسو په درس نظامي کې چې دعقایدو علم کې (شرح عقایدنسفی )تدرسیږي، د(اشاعره وو اوماتریدیه وو)په کوم تفاوت نه ،بلکې ددواړوپه مساوي احترام سره لوستل کیږي ،دشرح عقاید متن دعلامه نسفي رح دی ،چې پخپله حنفی دی او شرح یې دعلامه تفتازاني شافعي ده ،ددې معلومیږي ،چې

داحنافو پـه نظـر د(ماتريـده وو او اشـاعره وو)تـرمنځ کومـه اصولي فاصله او بيلوالی نشته .

مولينا ميرسيالکوټي هم ليکي چې :درسونوکې طالبـان او اسـتادان دواړه حنفيـان دي، مګرڅـه چـې پکـې لوسـتل کيږي ،هغه ټول اشعري دي ،ګويـا چـې نـن سبا حنفـي هـم اشعری دی (تاريخ اهلحديث ص۱۱۷).

**امام ابومنصور ماتريدي رح :**

دخواجه ابوالحسن الاشعری رح په عصرکې دسمرقند په يوه محله (ماتريـد)کې چې يـا دسـمرقند اړونـد يـا ورتـه نږدې کوم ځای دی ،په (۳۳۳هـ)کال کـې د(امـام ابوالمنصور محمدبن محمود)پـه چـې بيـا ورروسـته دمتکلمينـو امـام شو وزيږيد،چې نوموړی په دوه واسطو سره دامام ابويوسف رح او امام محمد رح شـاګرد دی ،امـام ابومنصـور ماتريـدي رح دامام ابوالحسن اشعري رح په څير دمعتزله وو،قرامطه ووا روافضو پرخلاف کتابونه ليکلي او د نصوصو پـه رڼـا کـې يـې پرې رد کړی دی ،مګر دنوموړې دبيا ن په طريقې او دعقـلي اسـتدلال پـه صـورت کـې پـه ځينـو مسـايلوکې لـه خواجـه ابوالحسن اشعري رح څخه اختلاف کړی دی ،نو ځکـه يـې طريقه بيله شوه اودماتريدي رح په نوم ونومول شو .(مقدمة المهندعلی المفند).

ډاکتر صيب رح په خپله مقدمه کې اضافه کـوي :چې امام ابومنصور ماتريدي رح په (استواء علی العـرش) بانـدې قايل دی، مګردعلو ارتفاع او علو مسافت څخه چورلټ نفـي کوي ،خو له بده مرغه ځينې خلک اوس دذات دباری تعالی څخه د جهت نفي نه کوي اود(اسـتوی علـی العـرش )څخـه ظاهري معنی مرادې پـه اخسـتلوسره پـه مجسـمه فرقـې کـې ورګډيږي ، امام ابومنصور ماتريدي رح دفقـه اکـبر پـه شرح ۱۸صفحه کې دا سې ليکـي :چې ((امـا مـذهب اهـل السـنة والجماعة ان الله تعالی علی العـرش علـو عظمـة وربوبيـة لا علو ارتفاع ومسافة ))،دديوبند کرام علـماء چـې داشـاعره وو او ماتريديـه وو پيـروان دي، دالله تعـالی پـه صـفاتو کـې دداسې متشابه الفاظو په باب له ظاهري معنی څخه اجتناب اونفي کوي ،ددې لپاره چې مونږ هم دمجسمه وو په کتار کې ونه شميرل شو، نو ضروري ده ،چې داسـې صـفاتو کـې چـې الفـاظ يـې متشـابه وي، ظـاهري معنـی نـه خـود اري وکړو......نو دلته به دعلو څخـه مـراد، علـو عظمـت او علـو ربوبيت شي، نـه علـو ارتفـاع او علومسـافت ،اوهـم بـه يـې دکيفيت له څرګندولو څخه پکې اجتنـاب شـوي وي او پـدې توجيه او تعبيرکې به څه غبارهم نوي انشاءالله تعالی!

والله تعالی اعلم

نوربيا.....................



